# دردونه احساسونه

## ایم طارق سحرؔ

تهٔ رانغلې انتظار کړمه تر اوسه .....
نهٔ رغیږمه دلبره لا بیمار یمه تر اوسه

لا په سترګو کښې مې نم د جدائۍ دے....
ډیر خوږیږمه، ژړیږم، په زار زار یمه تر اوسه

# دردونه احساسونه

ایم طارق سحرؔ


## ټول حقونه دَ مصنف ذی

دکتاب نوم : دردونه احساسونه

مصنف : ایم طارق سحرؔ

تبصره : ډاکټر پرویز مهجور او
ډاکټر راج ولی شاه خټک

کمپوزنګ او : }
د چاپ ځائے : } س پرنټرز پشاور 0345-8363909 0333-9894036

د چاپ نیټه : یولسم ستمبر ۲۰۱۳

شمیره : ۵۰۰

قیمت : ۲۰۰ روپے

درک: (۱) پښتو ځانګه . پښتو اکیډمی پېښوز پوهنتون
(۲) ګورنمنټ سیکنډری سکول لوندخوړ مردان
(۳) توحید و سنت بک ایجنسی لوندخوړ بازار مردان

# ترون

د مینې، وفا، درد او احساس

په نوم

ایم طارق سحر

# تبصره او مقدمه

طارق سحر صیب که لوئي شاعر نهٔ دے خو پښتو ادب کښې دَ شعر په میدان کښې دیو زبردست قلم او احساس څښتن دے.

دَ دردونه او احساسونو نه مخکښې ، دَ دشت لارې، ژوند یو سراب، یادونه او دردونه، خالی لاسونه، خیالونه او فکرونه دَ دهٔ دَ شاعرۍ ژوندی ثبوتونه دی دَ شاعرانو په صف کښې ښهٔ نیغ ولاړ دې هیڅوک حاسد، د دهٔ نوم دَ شاعرانو دَ صف نه نشی ویستلې، ځکه چې شپږ کتابونه لیکل ګران کار دے.

دَ طارق سحر شاعری کهٔ مونږ ولټوو نو اوّلنو زمانو کښې مجاز طرف ته مائل دے دَ دهٔ د شاعرۍ سر دَ مجازی مینې نه انښتې دے مجازی مینه ئې ډیره کړے ده ځنګه چې فطرت رو رو دَ مجاز نه حقیقت طرف ته تلې دے طارق سحر دَ مجاز او حقیقت مینه ښهٔ پیژنی او په شعر دَ دے وینا کوی.

ښاغلی همیش خلیل صیب او د قلم خاوندانو نوم کتاب کښې دَ طارق سحر تذکره کړے ده.

طارق صیب غزل ،نظم ، رباعی،قطعه،فرد، مثلث،مخمس،مستزاد او نورو اصنافو باندې ښهٔ تجربې کړی دی.

دَ خوارو ښهٔ دنیا، موبائل ، سَم شه، ګرمی ،یخنی، دتخت بهائی کندرات،میره مور، تول عمر،خلق هر چا کره نهٔ ځي مور به یکښې

نۀ یو او داسې نور ښۀ ښۀ نظمونه دَ طارق په شاعرۍ دلالت دے.

هسې دَ اوږدو خبرو نه هیڅ هم نۀ جوړیږی طارق سَحر صیب یو ښۀ شاعر دے دَ دۀ شاعری دِ مغز او فلسفې نه هم ډکه ده. دَ ژوند په هره لمحه او هر څۀ باندې ئې ښۀ نظر دے دَ ژوند نقاد هم دے.

طارق صیب څما ډیر پخوانې ملګرې او دَ ادب یو ښۀ باذوقَ او ویښ شاعر دے د ژوند په هره موضوع ئے قلم اوچت کړې ښکاری.

ډیر عمر دې ژوند ے وی چې پښتو ادب له څۀ ورکړی.

ډاکټر پرویز مهجور خویشکی

پیښور پوهنتون،پاکستان

۱۵ ستمبر۲۰۱۲

......★★★......

# "دَ طارق سحؔر خبرې"

شاعري يو رسمي او بناوټي څيز نۀ دے او نۀ دَ چاپلوسۍ کار دے چې دَ غټو خلقو دې چاپلوسي اوشي او هغه دا ووائي چې فلانې ښۀ شاعر دے، شاعري پخپله ځان ښائي څۀ چې وي هغه اثر غورزوي دغه زما شاعري ده د قام او دَ راتلونکو خلقو په مخکښې دا خپل اثر په خپله ښائي.

ډاکټر پرويز مهجور او ډاکټر راج ولي شاه چې دَ ادب منلي شوي استاذان دي ښۀ بااخلاقه دي او دَ انسانيت خاطر پکښې څۀ قدرے ډير دے.

څنې خلق داسې شته چې دَ دنيا په عهدو او رنګ شرنګ ډير اوچت ئي او اکثر دَ بل انسان منلو ته هم تيار نۀ وي.

دَزړۀ نه وائيم چې ډاکټر مهجور صيب او ډاکټر راج ولي شاه صيب ښۀ انسانان دي زما په شاعرۍ وخت په وخت ليکنه کوي او په لنډو ټکو کښې قام ته ښائي چې څنګه شاعر دے دَ دوي ډيره ډيره مننه.

طارق سحؔر لوندخوړ مردان پختونخواه

۳۰ ستمبر۲۰۱۲ پاکستان

★ ★ ★

# الله! الله ! الله!

ښــه ده ښــه ده چــې خـالق دَ کـائـنـاتو
ښــه ده ښــه ده چې خالق دَ موجوداتو
ګـنـــی خـلـق فـرعـونـــان دی
ګـنـــی خـلـق ،خـدایـــان دی
تـا مـنـی دَ سره نـه، چـې دا انسان دې
تـا مـنـی دَ سره نـه ، چـې مسلمان دې
ښـــهٔ ده ښـــهٔ ده چــې خــالـق ئـې
ښـــهٔ ده ښـــهٔ ده چـــې رازق ئـــې
خــلــق ځــان رازقـان ګـنـړی
خـلـق ځـان مـالـکـان ګـنـړی
ښـه ده ښـه ده چې نظام دَ تا پـه لاس دے
ښـه ده ښـه ده چـې انسان څـهٔ کوز و پاس دے
دلتــه خـلـقـو ټـول نـظام دے شرمولې
دلتـه هـريـو خپـل ژوندون دے رغـړولې
ښــه ده ښــه ده اے الله چـې تـهٔ الـلـه ئې
ښـهٔ ده ښـهٔ ده اے الله چـې تـهٔ الله ئـې
زهٔ سـحـر ځـکـه پـه شـعـر ستا ثنا کـړم
ډیـر حیـرانـه زهٔ انسـان او دے دنیا کـړم

# محمدؐ ته !

چې ستا په زمانه کښې زۀ پیدا وې
په تا باندې شیدا وے
او زۀ تول وفا وفا وې
زړۀ دردونه مې کول
دیدنونه مې کول

یارانو سره ناست وې
دوستانو سره ناست وې
صحابانوؓ سره ناست وې
او بحثونه مې کول
دیدنونه مې کول

هجرت کښې درسره وې
مصیبت کښې درسره وې
هر آفت کښې درسره وې
سفرونه مې کول
دیدنونه مې کول

غزاګانې مې کولې
کافران مې قتلولې
او ما ځان قربانولې

جنګونه مې کول

دیدنونه مې کول

په بقیع کښې چې دفن وې

دغه خاورې مې مسکن وې

دَ یثرب څما کفن وې

زیارتونه مې کول

دیدنونه مې کول

زمونږ ستا کوڅه کښې کور وو

صحابانؓ هم لور په لور وو

دا سحرؔ دَ دین غم نور وو

حدیثونه مې لیکل

دیدنونه مې کول

......★★★......

# دَ خوارو څۀ دنيا

دَ سپينو دَ مالدارو دا دنيا ده دَ خوارو څۀ دنيا
چې ښکلې ئې مالدار ئې نو بيا ستاده دَ خوارو څۀ دنيا

رسوا به ئې چې خوار ئې هم سپك به ئې چې خوار ئې
کۀ کور ئې کۀ بهر وې دَ مالدارو يو غوغا ده دَ خوارو څۀ دنيا

غريب چې په دنيا شې ،سوې لوې ئې بدرنګه
څوك ګورى درته نه ستا څنګه خوا ده دَ خوارو څۀ دنيا

خفه وى پريشانه .....هر څۀ کښې سرګردانه
خوشحاله هم مالداره، هم ئې مينه هم وفا ده دخوارو څۀ دنيا

په مړنې ښکلى ،ښکلې وى، مالداره به مالداره
په غاړه غريب پروت وى، ئې لمحه هره تنها ده دَ خوارو څۀ دنيا

له ډيرے تجربې نه پس مې دا نظم ليکلې
سَحر هر څوك ليدلې تجربه ئې په هر چا ده دَ خوارو څۀ دنيا

......★★★......

# موبائل

خیالونو کښې سندرے هم په زړونو کښې سندرے
حق به څنګه واوری هم په زړونو کښې سندرے
وَاِن مَسَاجِدَ لِلّٰہِ فلا تدعو مع الله احد
جماعتونو کښې سندرے په مونځونو کښې سندرے
قرآن دَ زړۀ نه لاړو موبائل لاسو له راغے
په تللو کښې سندرے ، په لاسونو کښې سندرے
خیال به دے هم نۀ وی چې ناڅاپه به یو کړنګ شی
په خوا کښې دے سندرے په جیبونو کښې سندرے
فرښتې لاړے آسمان ته ، شیطانان دی ټول راغلی
په کورونو کښې سندرے بازارونو کښې سندرے
ښکلې انسانان وو، شادوګان او پیشوګان شو
ګډیږی راګډیږی.... په خیالونو کښې سندرے
دا شوه مشغولا دَ ژوند، دا شوه یو ښکلا دَ ژوند
په ویښه هم سندرے په خوبونو کښې سندرے
خاموشه باندے مۀ شه لږ ښۀ اوګوره دنیا ته
ښادو کښې څومره ډیرې، په غمونو کښې سندرے
دانخښه دا قیامت ده مسلمانه ور خبر شه
ګډا به ورسره وی احساسونو کښې سندرے
حق به دوی څۀ واوری سحر! موبائل غوږونه بند کړه
په زړونو کښې سندرے په غوږونو کښې سندرے

# کور ته!

کور کښې مور میره ده زما کور ته ډېر نهٔ لګی
مور مې خپله نیشته، نور مې مور ته ډېر نهٔ لګی
وائه چې یوائې چرته ناست ځان له په شړو کښې
دادَ مې دنیا ده، هم مې رور ته ډېر نهٔ لګی
هر څهٔ رانه لاړهٔ، روغ زړګي ئې راله وچوؤ
کړمه ئې بیماره، اوس مې زور ته ډېر نهٔ لګی
مور او خور مې نیشته دا خپل کور راته پردې لګی
پلار رانه پلندر شو، هم مې ترور ته ډېر نهٔ لګی
هر وختې خفه ئم پریشانه سرګردانه ئم
ژوند راته سوړ اور شو هیڅ مې نور ته ډېر نهٔ لګی
هر سړې غرض لیونې کړے دے
خپل دے کهٔ پردې دے مې هر لور ته ډېر نهٔ لګی
ئمه په صحرا خوشحاله غم غلطوم سحر
ستړې په دنیا شوم اوس مې شور ته ډېر نهٔ لګی

# عقلونه حکمتونه!

پــه شــعــر درتــه وائیمــه دا اوره ځــان ســـه
زړګې بـه درلـه پـوخ کـړی هم دَ روره ځان ساته

لړ اوګـوره وجـود ئـې ،بې شـمـاره ئې غاښونـه
زخـمـی بـه پـه لاسـونوشې دَلوره ځـان سـاتـه

تبأه شی هم برباد شی خپله مور چې دَ چالاړه
پلار چې دے پلندر شی میرے موره ځان ساته

زور عـجیبـه شیـز دے. زورآورو خـوا لـه مهٔ ځه
مـلا بـه درلـه مـاتـه کړی لـه زوره ځـان سـاتـه

مـئیـن کـهٔ ئـې پـه تورُه،دا یو توره اژدها وی
مړ بـه دې کـړی یـاره!لـه تك توره ځـان سـاتـه

پـه ځان به نهٔ پو هیږې ! په جهان به نهٔ پو هیږې
عـقـل بـه ذې ورك کـړی تـل لـه شوره ځان ساته

خوارهٔ خوارهٔ ډیر ښهٔ وی نورزړګې به درله تریخ کړی
تـرخـو خـلـقـو نـه لـرے شه له سپوره ځان ساته

پـه شـعـر سـحـر وائـی دَ حـکـمـت ډکې خبرې
دامـخ بـه درلـه وران کړی هم له سُوره ځان ساته

...... ★★★ ......

# زړهٔ

زړهٔ خو هر ځهٔ هر ځهٔ غواړی
کله خاندی ، کله ژاړی.........

تل دَ زړهٔ په لاره مهٔ ځه...
سرېتوب ځنې رانغاړی

دَ خپل ځان نه ووېرېږه!
چې سایه درته ولاړوی

ښهٔ عمل خپله شیوه که
داسې ژوند کا چې ویاړی

دے زړګیو ته حیران ئم
چې په هیڅ دَ بدو نهٔ اوړی

زهٔ سَحر چې هر ځهٔ ګورم
زړهٔ همیش له غمه ژاړی

......★★★......

# مالداری او دانائی

کۀ تۀ مالدار شولے نو څۀ به وشی ډیر مالداران دَ خاورو لاندې تلی
کۀ تۀ امیر شولے نو څۀ به وشی ډیر امیران دَ خاورو لاندې تلی

خدائیگو دَ زړۀ نه درته وائیمه، دَ زړۀ خبرې
کۀ تۀ بادشاه شولے نو څۀ به وشی ډیر بادشاهان دَ خاورو لاندې تلی

لږ افلاطون وته نظر وکړه، څۀ بچ خو نۀ شو
کۀ ډیر عاقل شولې نو څۀ به وشی ډیر عاقلان دَ خاورو لاندې تلی

یو ورځ به راشی بیا به نۀ پوهیږې
کۀ تۀ دانا شولې نو څۀ به وشی ډیر دانایان دَ خاورو لاندې تلی

سحر! نۀ اورې څوک دَ مرگ او دَفنا خبرې
هسې ئې وایه خدائیگو څۀ به وشی، ډیر شاعران دَ خاورو لاندې تلی

......★★★......

# قطعه

څۀ به ورکړی یو انسان یو بل انسان له
انسان خپله ډیر غریب او ډیر مختاجه

کۀ تۀ خواړي نو همیش له ربّه غواړه!
چې بادشاه دَ کل جهان دي سر بے تاجه

یو الله دي بے حصه ورکول کړی
نۀ مړیږے! کۀ بادشاه شوے اے حُجاجه!

...... ★ ★ ★ ......

# منړه (آزاد نظم)

موتړ ئې پیدا کړے دے
سکوټر ئې پیدا کړے دے
دَلوړې نه په دود دے
یاره! نر دے او کۀ ښځه!
دنیا پسې یو منړه ده رانغاړی منزلونه
نۀ ځان باندې ئې کار شته
نۀ په بل باندې ئې کار شته
وهی دا سفرونه!
دنیا پسې یو منړه
تش په مال پسې ئې منړه
تۀ به وائې لیونې دې
تۀ به وائې لیونې دے
کۀ نۀ منې نو ته وګوره پخپله
نۀ ئې مبراسفا شته
حیا ښځو نه لاړه
دَ سړو نه په منړه منړه.
ایمان بوډا نه لاړ
دَ زلمو نه په منړه

دوړو نه په منډه

ګنې بيا له لوړې مرو

دا څۀ وختونه راغله

دادنيا زمونږ ايمان

دادنيا زمونږ جهان

خدايه......

خدايه.....

......★★★......

# خان او غریب

نـهٔ شـی دَ خـانـانـو فـقیـرانـو سره کـلـې
درنـې ئـې وی خبـرې پـه درنو کانړو ئې تلی

چـرتــه دَ خـــانـــانـــو فـقیـرانـو رواجـونــه
دَخیـتـې پـه تـلاش کـبـنـې غـریبې وی ډیر زپلی

جُـدا ئــې وی نـازونــه، او جُدا ئې اداګـانـې
اوچت ئې وی خیالونه ،دوی په بام باندې ختلی

هسـې غـریـب وائـی څـمـا خان سره دوستی ده
دوستی او یاری چرته ! دوی ئې خدمت لره ساتلی

دغـه یـو انسـان دې څـې پـه بره باندې ولې !
سـر دَ تـولـو یـو دې ،دوی خمار باندې ختلی

دَ خـان بـرابـر نـهٔ ئـې چـرتـه کینـه پـه قلاره
خپـلـه غـریـبـی کـوه سـحـرَ ډیـر خلق کتلی

...... ★★★ ......

# زما قسمته !

زمـــا قســـمتـــــه څـــۀ دے اوکـــړۀ !
زۀ ووم نيـازبيـن دَ زمـانـې رسوا دے کړمه

زمـــا قســـمتـــبـه څـــۀ دے اوکـــړۀ!
تـا خولـه تـختـه پـه ډهيران راوويشتمه
زمـــا قســـمتـــــه څـــۀ دے اوکـــړۀ !
مـالـه دے راکړۀ پـه دلـو دلـو غـمـونـه!

زمـــا قســـمتـــــه څـــۀ دے اوکـــړۀ !
بيـا بـه مې وار پـه دنيا نۀ وی مړ به شمه

قســـمتــــــه څـــۀ درســـره اوکـــړم
تـا خـو زمـا پسـې ټول ژوند اور کړې دينـه

قســـمتــــــه څـــۀ درســـره اوکـــړم
پـه بازار نۀ وې چې زۀ واخلم قسمتونه

......★★★......

# سم شه

انسانـــه بـوډا کيـږي خدائيـګو سم شـه
هـوا بـانـدې ورکيـږې خـدائيـګـو سـم شـه

دا دوه ورځـې دنيـا ده نن بـه وی سبا بـه نـهٔ وی
دَګـل غـونـدې رژيـږی خـدائيـګـو سـم شـه

پـرون تـرو تـازه وې ځـان تـه پام کـړه .....
نـن مـړاوې مـړاوې کيـږي خدائيـګو سم شه

اے يـاره ځـمـا يـاره!تـا بـه ليـچې لـګولـی
اے بـل تـه ميـراتيـږې خـدائيـګـو سـم شـه

په خاورو به تهٔ موړ شې بل په هيڅ هم نهٔ مړيږې
حـرص کبنـې لازياتيـږې خـدائيـګو سم شه

چـنـار غـونـدې کـهٔ ښـکـلـې ئـې نو څهٔ شو
رو رو بـــه راتيـتيـــږ ې خـدائيـګـو سـم شـه

په شعر سَحروائی دَ مطلب ډکې خبرې
ښهٔ پو هه ، نهٔ صبريږې خدائيګو سم شه

......★★★......

# زۀ به څۀ وائم له خلقو !!

زۀ بـه څـۀ وائـمـه لـه خـلقو دهوکه باز او دروغژن
پـه ښـکاره ښکلې ښائسته وی او په پټه ډیر پمن
پـه ظـاهـر کښـې ښـائسـتـه وه پـه بـاطـنه کښې خیچن
دا خـلـق نـۀ پـوهيـږی کـۀ هـر څو وائم سُخن
د سپی غوندې کۀ ګوری، هم خوشحاله ....
دَ غریبو نه کړی کرکه، په مالدارو وی مئین
دې دنیـا بـانـدې ایمـان خلقو راوړلـې
څوك خبرې هسې نۀ کا، ئې خبرې په ثمن
هـمـه زمـکـه آسـمـانـونـه دَالله دی ..
پـکښـې بـدی بـه شـې یاره هم د نرو هم د جَن
دے بـے واره بـه وئيـږی ، بے ګودره به غرږیږی
بـے مـطلبـه ئـې خبـرې هم په ژبـه پـه دَهن
تـۀ به وائې چې الله دے لوئے سجدے له تا نه غواړی
ځـان بـره بـه دے ګـڼـړی، څومره ډیر دے کبر ژن
کیـنـه حسـد ئې په زړۀ کښې په سینه کښې دے انښتې
زۀ حیـرانـه یمـه خدایـه ! څنګـه څنګه شو مومن
زۀ به څۀ وائم له خلقو دَ غرض ډکه دنیا ده
څو خبرې دَ سحر وې هم په خیال هم په بطن

# مور پلار

پلار یو سورې دَ آسمان پلار تخفه ده دَ جانان
پلار نوکر دے هم غلام، دے یو رحم دَ سبحان

دنیا ځائې دے دَ غمونو دنیا ځائې دَ آفتونو
پلار مظبوطه یو قلا ده پرے به بچ ئې هر یو آن

زړهٔ په هر چا نۀ خوږېږی ،په هر چا نۀ قلارېږی
پلار خوارۀ د دې دنیا دی ، ګنی شې به یو آرمان

ورېږې ترېږې به ګرځیږې همیشه به پریشانه
سوړ سوکړك به څوك درنۀ کا ، چې درکئی په احسان

چې مور پلار دَ چا حیات وی نو بیا بے تخته بادشاه وی
چې دوی نۀ وی په دنیا کښې، سراسر همه خفګان

دمور پلار خبرې ډیرے په لیکلو نۀ ختمېږی
زۀ هر څۀ محسوسومه مې په شعر دا بیان

...... ★★★ ......

## (انسانی ژوند دے بل شان)

یو طرف دے جوړیږی
بل طرف ته دے ورا نیږی

نوے نوے پیدا کیږی
چې زاړۀ شی نو ختمیږی

یو طرف ته تازه کیږی
بل طرف ته دے رژیږی

یو طرف کښې دے خوږیږی
بل طرف دے ترخیږی

دَدۀ یو اړخ آغاز وی
په بل اړخ دې ختمیږی

یو طرف ته خوشحالی وی
بل طرف ته دے غمیږی

څوك پیدا شی څوك مړۀ کیږی
څوك خندیږی څوك ژړیږی

یو طرف نه انسان راشی
بل طرف نه روانیږی

یو طرف باندې یو شور وی
په بل اړخ ژوند سړیږی

# غزل

تـامې مینې نۀ زړۀ تور کۀ دلربا
ډیـر دے راکـړۀ نـفـرتونه لا سوا

تــا دروغ دروغ وئیــل بــه چــې زۀ ستــا ئـم
زۀ خو ستا وومه دلبر ه ، تۀ په خپله شوے دَ چا

ډیر دے راکړۀ پـه زړګی سوی داغونـه
پو هـه پو هـه شوم دلبره بیا به نۀ کوم وفا

څوك چې مینه درسره کړی، ورسره کوه تۀ مینه
تا چې څۀ اوکړۀ په ما ،داسې نۀ کړی څوك په چا

دَ ربنتیـا مینې آزار به دے آزار کړی
څۀ مې حال شو ،تا ونۀ کتل په شا

ستا وصال محبوبا، ډیر ډیر راته ګران شو
دَ رقیب سره تۀ لاړے دَ سحرنه شوے جُدا

......★★★......

# اے ښځو!

زن چې ووځی له کوره
ځما یاره حال ئې ګوره

دا ازاده سریلا شی،
لکه اوښه به مهاره

سر تر پایه راښکاریږی
ښکلې ښکلې مزیداره

هـــر طرف ته داګر ځیږی،
ښکلې ښکلې په سنګاره

دهر چا په زړهٔ ګزار کړی
هر زړګې کړی پاره پاره

و هر څهٔ وته ئې ګوره
مـــزه اخله زما یاره

ډیر قچر لوچر پیدا شو
خپله مور لری نه خوره

پردی مـــرد سره خبرې
تهٔ ئې نهٔ وینې شمکوره

دَ شکاڼره په شان رنګداره
نهٔ حـــلاله نهٔ مـــرداره

په سیلونو پسې ګـــرځی
خوچې راشی ډوډۍ سپوره

پخوا ښځې دا سې نۀ وے
په.خپل کور باندې نسکوره

دا دَ کوم مذهب رواج دے
کتاب ګــوره څما روره

ښښتنې دَ خاورو لاندې
یائې کور وو یا ئې ګوره

.درته وائیمه په شعـــر
ښځو مۀ وځۍ له کوره!

یو وقار دے په پرده کښې
لـــرې لـــرې شۍ له شوږه

په بازار کښې بدې لګۍ
سَحر وائی دَ زړۀ له زوره

......★★★......

# هر سړي په منډه

موټر ئې پيدا کړي دے
سکوټر ئې پيدا کړي دے
زۀ هم يم په منډه
تۀ هم ئې په منډه
دا دور دَ پيسو دے
نۀ ځان باندې ئې ګار شته
نۀ په بل باندې ئې کار شته
تلاش کښې دَ رقم دې
تلاش کښې وی دَ خيټې
وهی دا سفرونه
دا دور دَ سيالو دې
کارونو ته ئې ګوره
په دواړو جامو شخوند کا
حلال او مردار نۀ وی
راوړی دا جولې ډکې
چې کوم ځائې دنيا ګټې وی
دَدۀ ورته سر ټيټ وی

په دین هیڅ نۀ پوهیږی

په قانون هیڅ نۀ پوهیږی

خو منډه وهی تیزه

هر ځۀ نه پښې چاپیره

دا دور دَ بنګلو دے

دا دور دَ پیسو دے

دادور دَسیالو دے

هر سړې په منډه

......★★★......

# روغ صورت

په شاهۍ به دے ورنۀ کړم اے ځما روغه صورته!
کۀ ملنګ یمه هم خیر دے اے ځما خواره قسمته!

چې زۀ روغ یـئمه دَ کل جهان بادشاه ئم
لړ بیمـاره، بیـا رسوا شم ،لـه حاجتـه

چې تۀ روغ هر څۀ به وکړې په دنیا کښې
دا چې کیږی هر څۀ کړې اے روغ صورته

دَصحت دننه څومره لوئې کمال دې
هر چه کیږی هر څۀ کیږی له طاقته

څۀ پروا په جهان نۀ لـرم ګرځیږم
روغ وجود یو سرمایه ده له حکمته

درپـه درکـۀ تکړې غواړمه هم خیر دے
خو چې روغ ئې سلامت ئې اے صحته

کۀ تۀ نۀ منې رنځورو نه تپوس کړه
دا تخفه ده د رب سحرته له قدرته

# دلربا

تیر وختونه راپه یاد که
چې به نۀ وي دلربا

تازړګي راله چولي
مې دَ زړۀ وي محبوبا

څما مینه تا سـزه وه
خوتۀ ډیر وے بے وفا

یاره ستا څنګه زړګي وو
پکښې نۀ وو درد څما

څکه وائم دَ فراق فراق سندرې
ستا هجران مې په زړګی کړه واویلا

تیـر وختـونـه راپـه یـاد کـه
دَسحر وي محبوبا دَسحردَ زړۀ اشنا

......★★★......

# شاعران

شاعران څنګه پیدا وی
فلسفیان څنګه پیدا وی

دَدوی هر یو ډوب نظر وی
هـر یو ځان له قلندر وی

دوی دَمینې نه سم ډک وی
دَدوی مینه سم یو شرق وی

دوی جُداله نورو خلقو
دور تنهاله نورو خلقو

دوی دَ مینې سمندر وی
دوی دَ مینې ښهٔ خبر وی

دوی خاموشه غوندې ښکاری
څهٔ ناپوهه غوندې ښکاری

په هر څهٔ چې دوی پوهیږی
په هغــو بل نهٔ ر سیږی

دوی ریښتونی اخلاص مند وی
دوی خوږمن وی او دردمند وی

انسان دوسته شاعران وی
له ازله دوی پوهان دی

دَ دوی زړۀ یو لوی بازار وی
چې هر څۀ پکښې انبار وی

دا صفت دَشاعر نۀ دې
دا شاعر څۀ باتور نۀ دے

حقیقت مې کړه له شعر
داسې لیك دَ سحر ډیر

......★★★......

## قطعه

ټول عمر غریزه تۀ به څۀ وکړې
ښۀ خو خاموشی ده درته وایمه

هیڅ ترې نۀ جوړیږی ځان به سترې کړې
دا خو یو حکمت، دے درته ښایئمه

# غزل

ویښ شه ژوندون ګران دې اوده کېږه مه
څه منزل ته څه، چرته اودرېږه مه

خیر که چرته ستړې شوے دمه کوه
توقې مسخرې نه دی خندېږه مه

ژوند خو تور سیلاب دے سرې ورې ګُله!
کلك شه درته وائمه ،غورزېږه مه

څوك دَهیڅ هم نه دی. څهٔ کُوې نه شی
هسې به شې تیت ،چاته تیتېږه مه

ښکلې زندګی تیرول، یاره ډیر مشکلا ده
ویښ اوسه چابك اوسه سستېږه مه

دادنیا هم ستاده اے سَحر چانه کم نهٔ ئې
سیال شه دَ سیالانو پاتې کېږه مه

......★★★......

# اے خیتې

اے خیتې نۀ مړیږې
اے خیتې نۀ ډکیږې

زۀ غـل شـوم ستـا دَپاره
قـاتـل شوم ستـا دَ پـاره

دروغژن دې رانه جوړ کړو
غمژن دې رانه جوړ کړو

دهوکه کړم ستا دَ پاره
ډاکه کړم ستا دَ پاره

حريص دِ رانه جوړ کړو
مريض دے رانه جوړ کړو

ليونې شوم ستا دَ پاره
سپيلنې شوم ستا دَ پاره

ايمان مې درنه ځار کړو
داځان مې درنه ځار کړو

افسرشوم ستا دَ پاره
چاکرشوم ستا دَ پاره

ملکونونه دې ورك کړم
رسمونو نه دې ورك کړم

سوال گر شوم ستا دَ پاره
گرُ گرُ شوم ستا دَ پاره

اے خیتې نۀ مړیږې
نۀ سړیږې پوره کیږې

هر چا باندې زۀ پښې ږدم
ظالم ئیمه خندیږم.........

لاپروا له خپله خدایه
بې وفا له خپله خدایه

سحرلوګې لوګې شو
مازیګر لوګې لوګې شو

اے خیتې نه مړیږې
اے خیتې نۀ ډکیږې

......★★★......

# زړهٔ مې راته وائی

دا زړهٔ مې راته وائی چې ما وږی مړولې
چا پیره ګرځیدلې، ما پیاده راخیژولې

دازړهٔ مې راته وائی، په ژړا مې څوك لیدلې
په خواكښې ئې زهٔ ناست وې ما ئې اوښكې اوچولې

دازړهٔ مې راته وائی، مابرېنډ چرته لیدلې
ما جامې وراغوستلې دَدوی تن مې پټولې

دازړهٔ مې راته وائی مسافر مې چې لیدلې
ډوډې مې وركولې، مې استوګنه كښې ساتلې

دازړهٔ مې راته وائی دَ غمژنو خلقو څار
مې خپل خواكښې كښینولې او مادوی خوشحالولې

دازړهٔ مې راته وائی مرور مې هم لیدلې
په سر مې ورله لاس وې او دوی ما پخلا كولې

دازړهٔ مې راته وائی دروغژنو نه جُدا وې
رېښتیا زما دنیا وې ما رېښتیا رېښتیا وئیلې

دازړهٔ مې راتـه وائـی څمـا دومره مـال او حـال وي
دهر چا مې څارولې ، پـه هر چا مې مال شیندلې

دازړهٔ مـې راتــه وائـی ګـرځیـدلـې ګـرځیـدلـې.....
دَ غــریبـو دَ بـے وسـو ، مـې حـاجـت پوره کـولـې

غــریــب ئـمــه پخپلـه سوزیـدلـې سوزیـدلـې
پـه هـغـو خفـه کیـږم چـې غـربت وی ډیر وهلې

دازړهٔ مـې راتــه وائـی چـې دَ هـغـو سره کښینـه
چـې سپك وی ډیـر پـه خلقـو همیشـه خلقو رټلی

دازړهٔ مې راتـه وائی چـې تـنهـا ئې څوك ئې نهٔ وی
چې نـاست دَ هغـو خوا کښې تسلی مې ورکولې

دازړهٔ دَ سحـر وائـی چـې یـو ښـهٔ ښـکلې شاعر شوے
دزړهٔ تـولـې خبـرے مـې پـه شعـر کښې لیـکلې

## رباعی

رواجونو کښې ډوب شوې حقیقی ژوند ون راواخله
په رسمونو کښې ډوب شوې قیمتی ژوندون راواخله

یو دوه ورځې ژوندون وی بیا ژوندون به نهٔ وی یاره !
شیطانی ژوندون دې پریږده خدائی ژوندون راواخله

......★★★......

# غریب خاوند ښځې ته!

کور مې تاله یو ارمان کړو — ما تالا تاله جهان کړو
ملا مته یمه تاته ...... — ښکلې ژوند دې ما ډهیران کړو
بهارونه وی بیا چرته — ستا بهار ما نن خزان کړو
د خپل کور په طمع طمع — سر مې تا باندې ګردان کړو
ستا زړګې شولو آزاره — تا تهول ژوند په ما قربان کړو
ستا نصیب کښې به کور نهٔ وو — مې په تا ژوند زندان کړو
دځوانئ موسم بیا چرته — ژوند مې تاله بیابان کړو
د فقیرو ژوند دې تیر کړو — تا لوګې لوګې خپل ځان کړو
نه مې پته کړې له خلقو — ستا عزت هم ما ارزان کړو

زړهٔ مې سوې دے له خلقو
سؔحر دا نظم بیان کړو

...... ★★★ ......

# غزل

ستا یاری د بل سره ، نه کیږی څما او ستا
هسې مې زړهٔ وچوؤ ، خپل نشته هیڅوك دچا

هسې لیونې شومه ، هسې دې مجنون کړمه
زهٔ همه وفا، وفا، ته همه جفا، جفا

داسې دې زهٔ پریښودم ، نیمه لار کښې پاتې شوم
ځان سره دې بو نه تلم ، منزل ته زهٔ رسا رسا

بے یاره ژوند څه وی، بې مینې وی روح خفا
ته څما د زړهٔ اشنا، خفا یمه بغیر له تا

څو مره لا پروا پروا ، شوې رانه جدا جدا
ستا له غمه مړ به شم ، یمه زهٔ تنها تنها

څکه زهٔ غزل لیکم جانانه ته چې داسې یې
سحر فراق فراق شولو، اشعار لیکی اعلیٰ اعلیٰ

★ ★ ★

# آزاد نظم

توره به تیاره وی
توره کنده کښې به پروت شي
دَسر دَپاسه کانړی
دَپښو دَپاسه کانړی
په خاور کښې به بند شی
بیا چغې به کړې ډیرې
څوك به نۀ اوری آوازونه
یو توره مقبره به.....
یوتور غوندې ماښام
هر څوك به ترې ویریږی
تر عمره به بندی شی
راتلل به دې بیا نۀ وی
خندل به دې بیا نۀ وی
تۀ ورك به له دنیا شې
تیرو کښې به دې ژوند شی
وارونه به دې تیر شی

***

# آزاد نظم

توره به تیاره وی

توره کنده کښې به پروت شي

دَسر دَپاسه کانړی

دَپښو دَپاسه کانړی

په خاور کښې به بند شی

بیا چغې به کړې ډیرې

څوك به نۀ اوری آوازونه

یو توره مقبره به.....

یوتور غوندې ماښام

هر څوك به ترې ویریږی

ترعمره به بندی شی

راتلل به دې بیا نۀ وی

خندل به دې بیا نۀ وی

تۀ ورك به له دنیا شې

تیرو کښې به دې ژوند شی

وارونه به دې تیر شی



# زۀ یم ، زۀ یم !

زۀ یم زۀ یم ربّه ! ستا ګنهګار زۀ یم
په ګناه باندې ښۀ پوهه په هر څۀ خبردار زۀ یم

هیڅ پرواه زما دَ رب په حکم نیشته
راته ،رابه شي یو ورځ چې په دار زۀ یم

دَدنیا په روزګارونو ښۀ پو هیږم
نۀ جوړیږی زما روح، جوړ بیمار زۀ یم

دَدنیا په هلو ځلو مې ایمان دې
زۀ یم زۀ یم دَ دنیا ښۀ دلدار زۀ یم

الغفورو الودود چې ستا صفات دی
تۀ کریم ئې ! دَ کرم امیدوار زۀ یم

تۀ بۀ څۀ وائې سحرا په شعرونو کښې خبرې
خپل ګفتار دې ګلستان کا دَ ګلونو ګزار زۀ یم

# خلق هر چا کره نۀ ځی

وائمـه بیسیـاره خلق هـر چاکره نـۀ ځی
سپک به شی اے یاره، خلق هر چا کره نۀ ځی

درونـد کـانـړې پـه ځـائې همیشـه پـروت وی
شـې بـه عـزت داره، خـلـق هـر چـاکره نـۀ ځی

انسـانـان دَ زړۀ نــه تـنـګ وی ذا ریښتیـا دی
څوك دَ چانۀوی دلداره ،خلق هر چا کره نۀ ځی

تـنـګ بـه شـی پـه تـا چې کله تۀ ورکره لاړشې
شـې بـه تـۀ بیـزاره، خـلـق هـر چـا کره نـۀ ځی

عزت به تۀ خپل بائیلې کۀ دَ چاکره لږ لاړې
ښۀ پو هه شه هوښیاره خلق هر چا کره نۀ ځی

اوس هـغـه خـلـق نۀ دی هغه تهول دَ خاور لاندې
واوره دا ښـۀ واوره ،خـلـق هـر چـاکـره نـۀ ځـی

باران دَ رحمتونو مې په شعر راوریږی
دَسَحرشعر ګُلزاره ،خلق هر چاکره نۀ ځی

......★★★......

# فطرت

کۀ خاموش یم نادان نۀ یم خاموشی زما فطرت دے
کۀ تنها یم بل څۀ نۀ یم تنهائی زما فطرت دے
کـۀ تـۀ هـر څـۀ هر څـۀ وائې خطا کیږې
کۀ جُداجُدا لـه خلقو، جُدائی زما فطرت دے

# مقصد

بے مقصده څوك خبر دَ چاڅۀ اخلی
داانسان جوړ دَ مطلب په ورځ پیدا دے
چې مطلب دَ چا څۀ نۀ وی په چا څۀ کا
بے وقوفه خپل مقصد باندې خطا دے

# بد نیته

بد نیته بد بخیل مې په نظر باندې ښۀ نۀ لگی
بل شان ئې مخونه ، دَ زړۀ سر باندې ښۀ نۀ لگی
هسې به ئې بدی شی دوی هسې دښمنی کا
زړۀ ته نۀ کوزیږی په ځیگر باندې ښۀ نۀ لگی

...... ★★★ ......

# بتان

دابتان دی کۀ خانان دی
دا خانان کۀ فرعونان دی

مونږ بتان ځان لـه جوړ کړی
مونږ پرې شان ځان له جوړ کړی

برابر ورته ودرېږو
برابر ورته تېتېږو

دَ غریب پورې خندیږو
لوئې خانانو نه وریږو

دوی پروا دَ چا څۀ نۀ کړی
اللّٰهلوې دے خان به څۀ کړی

لکه بُت چې څنګه ګوری
داسې دوی بے خونده ګوری

مصیبت کښې ئې راغواړو
مونږ خانانو ته تش ژاړو

انسانانو نه جوړ کړی، مو خدایان
ډیـــر افســـوس، ارمـــان ارمـــان

انسان نۀ شی خدائې کیدلې
انسان نۀ شی ، څۀ کـولې

کائناتو کښې یو خان شته
په زړګی کښې مې ایمان شته

یو الله ته خپل سر ټیټ کړه
خپل دنیا آخرت ټیک کړه

یو الله ته سجده کـــړه
نو ر هر څۀ دلته میده کړه

دَ سحرنعره وحدت ده
دا تحفه ئې له قدرت ده

......★★★......

# آزاد نظم (دَ تخت بهائی کنډراتو په لیدو)

یوه ورځ دلته بهار وو
یوه ورځ تا کښې ژوندون وو
یوه ورځ تا کښې مستی وه
دلته ډیر به خندیدلی
دلته ډیر واړهٔ لوئی شوی
ځوانان ډیر به بوډاشوی
ډیر دَ ښکلو ښکلو خلقو
په تا سترګې لګیدلی
اے کنډرو !
نن خاموشه نن بے هوشه
غلې غلې ......
ګورې څهٔ رنګه زلمو به
ښکلی جینکو به .......
دلته څومره مستی کړی
دلته څومره مینه کړی
چابه ......
ډیر خوبونه کړی
څوك به تلی ......

ځوك راغلي.....
كښېنا ستلي.....
پاسيدلي......
دوی هر ځۀ به سم خوړلي
دا کنډرې ورته ګوره !
دادَ چا لاسو جوړې کړی
دابه چا سمې تراشلي
څومره شپې به ئې ....
دلته کړی ......
به ئې په مينه ژوندون کړی
ټول ورك شوی ورنه تلي
اے کورونو اے کنډرو !
دا تپوس کوم له تاسو
هغه خلق درنه ځۀ شو
دوی په کومه باندې تلي
هيڅ درك ئې چا ونه موند.....
اوس سپيرۀ کنډرې ښکاری
ډير ساده کورونه ښکاری
تشې نخښې پاتې شوی
ئې په ډوب نظر اوګوره

دا کوتې کنډرې نۀ دی

دلته ښکلې زمانه وه

دلته ښکلې ښکلې خلق

چرته ژوند به ئې کولو

ښۀ عبرت ورځنې واخله

داسې مونږ به هم فنا شو

څنګ چې دا دی فنا شوی

یوه ورځ دلته بهار وو

یوه ورځ دلته چغار وو

په افسو س او ارمان ګورم

دَ انسان هر یو آثار ته

په افسوس اوارمان ګورم

دَ انسان هر یو بهار ته !!

د تخت بهائی ښکلې کنډرو!

تاسو خوږ ځما زړګې کړو

......★★★......

# نظم مستزاد

کلرونه هغه کیږي خپل رب ته چې منظور شي — کار نهٔ کوي سو چونه
هغه هر څهٔ هر څهٔ کیږي لیك چې په تقدیر شي — کار نهٔ کړي تد بیرونه
دا خُلــه چې پرې ګویا ده دا تدبیر وي — تهٔ وکړه لږ فکرونه
هر څوك چې چرته ګیر شي هلته ګیر وي — کار نهٔ کوي خیالونه
چې خلق ورسره شي آ وزیر وي — کار نهٔ کړي حسدونه
چې راشي مصیبت پرې، نو دلګیر وي — بیا څهٔ کوي ویرونه
الله چې ورسره وي یا درویش وي یا فقیر وي — بیا څهٔ کوي څیزونه
سَحر چې تصور کړي نو ښهٔ لیك کړي هغه شعر وي — بیا څهٔ کوي نثرونه

......★★★......

# غزل

په لاسو پښو چې روغ ئې دغه ښهٔ زندګانی ده
چې وختونه ښهٔ تیریږی دا خبره احسانی ده

دا ژوندون ډیر ګران دې یاره، ځکه داسې وائمه
دا حکمت ستا نهٔ دے، دا تحفه دې اسمانی ده

چې تهٔ سپك ګورې ویل ته، دا ښهٔ نهٔ کړې
چې له ځانه ئې تهٔ دروند کړې دا خبره ربّانی ده

وخت رانیزدې شوې دے هر څهٔ جوړې ورانیږی
وګوره انسان ته ! څومره څومره ځان ځانی ده

خپله زندګی کوه ژوند دلته خدائی کوه
ورکه زندګی به شی ،دادنیا زیانی ده

نهٔ ګورې دنیا ته تهٔ، خلق ورنه تلی دی
بیا هم نهٔ پوهیږې یاره ! څومره نادانی ده

کم سحر ته مهٔ ګوره،سپك ئې لیك ته مهٔ ګوره
څهٔ کهٔ شعر وایمه، خبره حقانی ده

......★★★......

# غزل

وگوره انسان تـه پاتې نۀ دے یو انسان
دنیـا ئې اسره کړې ده دې مال پسې روان

پـه خلـه بانـدې بـه وائی چې زۀ دایم او زۀ دایم
دا څنګه ئې روزګار دے، او دا څنګه شو انسان

ښکاره ده دا خبره دا د چا نه پټه نه ده..........
دا څنګه ئې روزګار دے او دا څنګه شو انسان

پـه زړۀ بانـدې بـه یـو څۀ او پـه خله باندې بل څۀ
پـه خُلـه بانـدې تـش وائی ما راوړې دے ایمان

کۀ نۀ منې نو ګرځه په خلقو تیر وبیر
دا څنګه زمانه شوه سَحر ځکه، دې پریشان

......★★★......

# مينه مينه

ما به مينه مينه کړه ، تا ياره ستم کړلو
ما ياره وفا کړله تا ماتم ماتم کړلو

ما به مينه مينه کړه،تا رانه مخ واړو
ما رنړا رنړا کړله تا ياره تور تم کړلو

نيغ په نيغه مينه وه خوښ وې دَ زړګى ياره
ما به درکتل ياره، تارانه ځان خم کـړلو

ستا نفرت به هير نۀ کړم زړۀ کښې مې ليکلې دى
ستا ظلم به هير نۀ کړم سترګو چې به نم کړلو

ستا په مينه ډير شو مه ، خلقو نه کچه پيچه
تۀ چې شوې جُدا ياره وير مې چم په چم کړلو

مينې ته دے زړۀ نۀ وو هسې دے خندل ياره
تا به هــر څۀ وران کړلو ما به هرڅه سم کړلو

څکه دَ فــراق غزلې ، صبح و سحروايمه
ما به مينه مينه کړه تا ظلم هــردم کــړلو

رباعی

زړهٔ چې یو ځل مات شی هغه بیا کله روغ شوې دے
شین دکې چې پریوزی هغه بیا کله نیغ شوې دے
دا دروغ دروغ دی چې رغیږی زړهٔ
چور همیشه پروت وی وچ بیا کله تیغ شوې دے

......★★★......

# سترګو سترګو کښې

ګورو به جانانه تا ظلمونه په ما کړی دی
زړهٔ دې راله سوې تا ستمونه په ما کړی دی

مابه مینه مینه کړه تا ستم ستم کړلو
تا جفا جفا کړه، تا زوروونه په ما کړی دی

ماپه خاموشئ په سترګو سترګو، کښې به مینه کړه
تا کلې خبر کـړو، تا شورونه په ما کـړی دی

مړ شومه زهٔ هغه تا وعدې چې دَبل چا کړلې
اوُر دې په مابل کړو تا اوُرونه په ما کړی دی

نهٔ هیری یاره ستا ظلمونه دَسَحر دَزړهٔ
مانیازونه کړی تا نازونه په ماکړی دی

......★★★......

# دنیا دَشپې دَپاره

دَ ورځې وائی زماده دشپې دنیا دَچاده
دنیا عجیبه شې دې نهٔ ستا ده نهٔ ځما ده

دَشپې ئې هسې پرېږدی راوتې نهٔ شی انسان
داپرېږدې ترې نه تښتی دا هر څهٔ لکه ډهیران

دنیا دَ څو وختونو ده دنیا دَ څو لمحو ده
هر چاله زړګې سترې کړی دنیا ،ارمان ارمان

دَ ورځې بازارونه وی هر ځائې انسان انسان
دَشپې یو تورکندړشی چې تهٔ ګورې نو حیران

دَشپې پکښې مستی کوی، دا سپی او ګیدړان
یا ګرځی ګیر چاپیره ښاماران او شــرمخان

ویرېږی لهٔ دنیا نه، راوتې نهٔ شی انسان
داهسئې وائی یاره ،هم په زړهٔ هم په زبان

دنیا فانی ده داسې ډیر وائی ځوانان
دنیا دَ هیچانهٔ ده سحؔر شعر کـړه بیان

......★★★......

# غــزل

ویښ شه ژوندون ګران دے اوده کیږه مه
ځـه مـنـزل تـه ځـه چرتـه اودریږه مـه

خیـر کـه چرتـه ستړې شوې دمـه کوه
توقـې مسـخـرې نـه دی لـوبیـږه مـه

ښـکلې زندګی تیرول ګله ډیر مشکله دی
ویـښ اوسـه چابك شـه ستړې کیږه مـه

خوك دَهیڅ هم نه وی څه کوے نه شی
هسـې بـه شـې تیـتـه، چاتـه تیـتیږه مه

دادنیا هم ښه ده اے سَحر چانه کم نه ئې
سیـال شـه دَ سیـالانو ،پاتې کیـږه مـه

......★★★......

# هريو خيزلره يو حد شته

صباؤن بـه وي تركومې
داژوندون به وي تركومې

دابهـار بـه وي تـركومې
داچغـاربه وي تركومې

داځۀ هسې دنيـا نۀ ده
يـوه ورځ بـه شي تمامه

داصبـــااودامـــابنـــام
دَژونـدون حدونه هم شته

دابـے حده نۀ دي ياره !!
کـۀ دنيـا وتـه نـظر کړې

پـه يو حد کښې ده قايمه
دا ستا ناسته به تر کومې

داولاړه بـــه تـر کـومې
دالـړې دَژونـدانـۀ بــه

پــه آخره کښې تـس نـس شي
دابــے تـولــه ژونـدون نــۀ دے

دابې شماره ژوندون نۀ دے
پوه پـوه شــه اے يـاره!!

تهٔ په کومه زانگو زانگې
هریو ثیز لره زوال دې

دَ هریو ثیز آخری حد وی
دا ژوندون به وی تر کومې

داصبا به وی تر کومې
دا ماښام به وی تر کومې

هریو ثیز لره یو حد شته
یوه ورځ به قیصې ختمه

زمونږ ژوند به شی تمام
سحَرشعر کړی پیغام

یاره وپیژنه ځان
یاره هر څه دی روان !
دا ژوندون به شی تمام

......★★★......

# هر ځائې دی ښځې ښځې

ښځه مور وی او یا خور ښځه لور وی یا اینګور
ښځه یور وی یا ایندرور یا ابئې وی او یا ترور
زۀ به څۀ وائمه نور څۀ به نۀ وایم دَ ښځې
څۀ پخوا خو داسې نۀ وو نن ده ښځه لور په لور
بازارونو دفترونو کښې وی ښځې څنګه جوښتې رلوتلی وی دَ کور
تهوله ورځ ګرځی دوی خوشې خپل سرو نه څومره دور
هم جامه حیا ترې لاړه په دنیا شولې نسکور
یو اوبل سره خبرې دَ زړګیو ئې څومره زور
وریسې به زۀ او تۀ یو خو دانۀ کوی هیڅ شور
پخوا څۀ داسې نۀ وو یا به کټ وو یا به شکور
نن هوا سره خبرې ئې په هر ځائې کښې انځور
وی په هر انداز به ښکلې لکه ګل هسې سمسور
ښځه ده یو نازك بوټې یا به کور وی یا به ګور
پوهه پوهه شه چې څۀ ئې ښځې واوره تۀ ئې مور
مور او خور ئې خفه کیږم داسې اوګڼره چې رور
خپل مقام درنه هیر شوې ښحروائی داپه زور

***

# هر ځائې دی ښځې ښځې

ښځه مور وی او یا خور — ښځه لور وی یا اینګور
ښځه یور وی یا ایندرور — یا ابئې وی او یا ترور
زۀ به څۀ وائمه نور — څۀ به نۀ وایم دَ ښځې
څۀ پخوا خو داسې نۀ وو — نن ده ښځه لور په لور
بازارونو دفترونو کښې وی ښځې — څنګه جوښتې رالوتلې وی دَ کور
ټوله ورځ ګرځی دوی خوشې — خپل سرونه څومره دور
هم جامه حیا ترې لاړه — په دنیا شولې نسکور
یو او بل سره خبرې — دَ زړګیو ئې څومره زور
ورپسې به زۀ او تۀ یو — خودانۀ کوی هیڅ شور
پخوا څۀ داسې نۀ وو — یا به کټ وو یا به شکور
نن هوا سره خبرې — ئې په هر ځائې کښې انځور
وی په هر انداز به ښکلې — لکه ګل هسې سمسور
ښځه ده یو نازک بوټې — یا به کور وی یا به ګور
پوهه پوهه شه چې څۀ ئې — ښځې واوره تۀ ئې مور
مور او خور ئې خفه کیږم — داسې اوګنړه چې رور
خپل مقام درنه هیر شوې — سحروائی داپه زور

★★★

# غریب او امیر

زهٔ یم غریب ستا دَ خانې محفل کښې بدی لګم
زهٔ یم فقیر دَ امیرۍ، محفل کښې بدی لګم

ستا برابر نهٔ یم دلبره ،دَ یارۍ دَ پاره
یمه وړوکې دَ لوئې، محفل کښې بدی لګم

غریب یاری دې دَ غریب سره کړې
شم به رسوا دَ رسوائۍ محفل کښې بدی لګم

امیر ،امیر وی ،غریبانو له غریب پکار وی
زهٔ یم غریب،ستا دلبرۍ محفل کښې بدی لګم

پریږده چې یاره، ستا فراق کښې سوزم
یمه نادار دَ باداریٔ محفل کښې بدی لګم

زړهٔ مې شی تور چې ستا محفل ته درشم
تهٔ ئې جُدا دَ جدائۍ محفل کښې بدی لګم

زما او ستا یاری به څنګه اوشی.....
سحر ګدا ستا دَ شاهۍ ،محفل کښې بدی لګم

# ژوند

ژوند څۀ توقې لوبې نۀ دی
ژوند دَ سختو يو تفسير دے

ژوند څۀ داسې ژوندون نۀ دے
ژوند دَ غم يو تريو خمير دے

چې ماشوم ئې لړ لړ خير دے
خو چې لوئې شوے سر دے ګير دے

يوه ورځ دَ بلې سخته ....
ژوند دَ غم يو کلك زنځير دے

ناڅاپي طوفان به راشي
طوفان ستانه ګير چاپير دے

غريبي پکښې بلا ده
غريب هر پاړه کښې زير دے

کۀ معزور شولې په ژوند کښې
ځما جانه !وار دې تير دے

تمام ژوند باندې نظر کړم
دَسحَر قلم په زور دے

...... ★★★ ......

# تن جُدا جُدا

تۀ په خپل فطرت پیدا ئې
زۀ په خپل فطرت پیدایم
ته ته ئې
او زۀ .....
زۀ ،زۀ یم
ستا دغه طبیعت دے
ځما دغسې فطرت دے
بل ته مۀ وایه چې څۀ ئې
ځان ته وګوره چې څۀ ئې
تۀ په څۀ باندې اعلیٰ ئې
زۀ په څۀ باندې ادنیٰ یم
دغه دوه دی پښې او لاسه...
دغه ستا او هم ځما...
دغه دغه دَ هر چادی
زۀ ناپوهه ګورې نۀ یم
ډیر په هر څۀ باندې پوهه
دغه یو رنګې انسان ....
څوک دَ چانه بره نۀ دی

داخو ستا غلط فهمی ده
تول دَ خاورو نه پیدا دی
او په خاورو کښې مو کور ....
همه خدائې دی زیربولی
او دَ یو خالق مخلوق....
صرف کار جُدا جُدا
صرف رنګ جُدا جُدا
صرف رنګ جُدا جُدا
دغه یو رنګې انسان
تهٔ په خپل حالت پیدا
زهٔ په خپل حالت پیدا
پته نهٔ لګی دَ چا .....
څوك نزدې دی په الله
سحر ویره کړه هر دم
ژوند همه دے زیر وبم

......★★★......

# اے یارہ !

داشپې ورځې تیرېږی، چا ترې څۀ جوړ کړی نۀ دی ؟
راته ووایا اے یارہ !

څوک وګوره آسمان کښې په آسمان ختلی نۀ دی ؟
راته ووایا اے یارہ!

ښۀ وخت چې دلته تیر کړې دغه ښۀ زندګانی ده
چې تلې مقبروته بیرته څوک راغلی نۀ دی
راته ووایا اے یارہ

# یخنی

دا یخنی ده کهٔ سقر
ورته وګوره بهر

لاس وپښې زما رپیږی
دادې رحم کهٔ قهر

داسې بده هوا لګی
لکه سم بادِ صرصر

خدائیګو زړهٔ ځما درزیږی
مې څهٔ چل کیږی په سر

ښهٔ وی اوړې ځما یاره !
ارمان راغې د سمر

په یو ځائې باندې به پروت ئې
وتې نهٔ شې په سفر

یخنی تول غضب وی
راوتې نهٔ شې بهر

سم به جل وهلې ښکارې
کهٔ صبا کهٔ مازیګر

په آسمان به وی وریځې
پټ پټ ګرځی دا نمر

په هر ځۀ خزان خزان وی
یاره سمه وی کۀ غر

اوبۀ یخې ښنلې نۀ شې
بیا به پروت ئې په بستر

صرف چائے لو ډوډې خوره
دا وجود له ره بهتر

چې برستن یا نغرې وی
دا ښۀ لگی په تتر

یخنی زړۀ راله سوړې کړو
شعر ځکه کړی سحر

……★★★……

# هسکه غرې ژوند کړه

ښهٔ په هسکه غرې ژوند کا
سترګې مهٔ پټوه چاته

ښهٔ بیسیاره سخاوت کا
په څهٔ لاس ومهٔ ده چاته

دَ بخیلو څهٔ ژوندون دے
اوبهٔ مهٔ خړوه چاته

ښهٔ پرانستې سینه ګرځه
یاره ښهٔ اوګوره ماته

دهر چاسره نیکی کړه
وریسې مهٔ ګوره شاته

ډیر خفه او ارمانی شم
دښو خلقو ښهٔ دنیا ته

څهٔ یوازې دا ژوند نهٔ دے
یاره ګوره هم قضا ته

یار په هیڅ هم نهٔ پو هیږی
زهٔ به څهٔ ووایم تاته

دنن کار راسره مهٔ کړه
سَحر ګوره هم صبا ته

# غزل

خلقو ته چې ګورم نو زړګې مې حیرانیږی
مینه چاکښې نیشته په رسمونو خوشحالیږی

چاباندې چې پریوته پریوتې په هغو وی
تشه تماشه به کړې ،په چا هم نۀ خوږیږی

تول کښې دې ګیتهې نۀ ږدی چې دروند شی
هسې دَ خپلوئې دعوې کوی ، څوك نۀ خپلیږی

چاکښې اخلاص نیشته، چې دَ زړۀ درد مې قلار کړی
تۀ چې ورنه لاندې شې نو نیم نیم به غتهیږی

هر سړې په ځان دې یاره دا انسانیت نۀ دے
هیڅ پروا به نۀ کړی، خیر دے خیر کۀ بل مړ کیږی

هسې تلو راتلو او نمائش ته بیا حاجت دَ څۀ ؟
مینه چا کښې نیشته اے سَحر څوك پوهیږی

......★★★......

# ګرمي

ګرمي هم يره سيزل کا
سم به تلست ئې په تنور کښې

راوتې بـه چرتـه نـهٔ شـې
قيد به ناست ئې تهٔ په کور کښې

دَ پـنـکـو يـوه غـريـا وی
شپـه او ورځ بـه ئې پـه شور کښې

پـه هيڅ ځيزبـه نهٔ پو هيږې
ګويا پروت ئې تهٔ په ګور کښې

يـره سـاه بـه دې بنديږی
سمه سخته وی په اور کښې

آسمان زمکه کښې اور بل وی
ټول عالم ښکاری په جور کښې

دَاوبـو پسـې بـه ګـرځـې
بس اوبـه اوبـه شعو رکښې

دَګـرمـې نـه مې تـوبـه ....
سحر ځکه ليکی شعر کښې

دَيخنې نـه هم توبـه ...
بيان شوې نظم نور کښې

تل ځاريږه دَ سپرلی نه
بس ګرځيږه په ګلزار کښې

# غزل

هر ځـۀ به رادیر شی خو داسترګې به دې لاړې شی
لاړه بـه ځـوانـی شی داوجود بـه ګـارې وارې شـی

زړۀ کښې به دے یو څۀ وی په خله باندې به بل څۀ
عـقـل بـه دې کـوږ شـی دابه لارې نه بے لارې شی

دادنیــا بـــه ګـوري بیـــالیـدې نشـــې .......
هیـځ بـه نـظـر نـۀ راځـی داسترګې به ګُلدارې شی

زړۀ بـــه دې دا غــواړی چـــې زۀ لاړمـــه
تـلـې بـه چـرتـه نـۀ شـې داپښـې به دې بیمارې شی

ځان بـه تیـنـګوې یاره چرتـه تینګیدے بـه شې
هسـې بـه بهیـږې وارۀ بـول بـه درنـه دارې شـی

داځـوانـی بـــه لاړه شـی لاړــه بهـارونـه شـی
ـدې ورځـې شـپې بـه اے سحر بنۀ ایسارې شی

★★★

# تنهائی

تنهائی یولوې قوت دے
تنهائی نادانی نه ده
تنهائی بیماری نه ده
په جهان باندې به پوهه
په خپل ځان باندې به پوهه
هر احساس به دې سم وینښ وی
په هر څۀ به تۀ پوهیږې
ډیر ترلرې به رسیږې
دَخیالونو په تارونو...
ډیرترلرې په ښکالو به ...
ستا ضمیر راژوندې کیږی
ستا دانش به تول سالم وی
ستا په روح کښې آ قوت وی
په ذره ذره به پوهه
ښۀ او بد دَ ژوندانۀ به
تنهائی به تاته ښائی

......★★★......

# کاش چې تول عمرورکې

کاش چې تول عمرورکې دَ مور خوا کښې لویېدلې
مـور ځـمـا ژونـدې وهِ دَخپـل کـور کار ئې کـولې

کـاش چـې تـول عـمـر ورکـې لـو غـرېدلې توغرېدلې
مـور ځـمـا ژونـدې وه دا پــه مـا خوشـحـالېـدلـې

کاش چې تول عمر ورکې زهٔ په هیخ نهٔ پو هیدلې
مـور ځـمــا ژونـدې وه دې پــه رورو پــو هـولــې

کـاش چـې تـول عـمـرورکـې زهٔ بهر ته راوتلې
مـور ځـمـا ژونـدې وه ځـما لارې ئې څارلـې

کاش چې تول عمر ورکې ساعت په ساعت ورېږې کیدلې
مـور ځــمــا ژونــدې وه دې زهٔ زرزر مــرولــې

کاش چې تول عمر ورکې ماورانی ورته کولې
مـور ځـمـا ژونـدې وه او دامـاتـه قهرېدلـې
کـاش چنې تـول عـمر ورکې زهٔ ناپو هه نا خبره
مور ځـمـا ژونـدې وه پـه هـر څـهٔ پو هـه کولې

کاش چې تول عمر وړوکې په غرمو کښې ګرځیدلې
مور ځما لوږه وې ورته لویې مې کولې

کاش چې تول عمر وړوکې ماجامې خیرنولې
مور ځما ژوندې وه دې جامې ځما وینځلې

کاش چې تول عمر وړوکې مور په مینه راکتلې
مور ځما ژوندې وه په مخ مخ ئې ښکلولې

کاش چې تول عمر وړوکې زۀ ناپوهه نا خبره
مور ځما ژوندې وه زۀ ئې رو رو پوهولې

کاش چې تول عمر وړوکې او زۀ خوشې ګرځیدلې
مور ځما ژوندې دې په لاره کښې کتلې

کاش چې تول عمر وړوکې خپلې مور ته ما ژړلې
مور ځما ژوندې وه ماله ئې اوښکې اوچولې

کاش چې تول عمر وړوکې ماله خوب چې نۀ راتللې
مور ځما ژوندې وه دې په زور لوږه کولې

کاش چې تول عمر وړوکې زۀ په خوب کښې ویریدلې
مور ځما ژوندې وه دې له خوبه ویښولې

کاش چې تول عمر وړوکې زۀ ناوخته پاسیدلې
مور ځما ژوندې وه دې پـه چغو پاسولې

کاش چې تول عمر وړوکې، ما هیڅ کار هم نۀ کولې
مور ځما ژوندې وه دې پـه زور پـه ما کولې

کاش چې تول عمر وړوکې پـه هر ځۀ خفه کیدلې
مور ځما ژوندې وه دې پـه زور پُخلا کولې

کاش چې تول عمر وړوکې پـه هر ځۀ کښې شرمیدلې
مور ځما ژوندې وه مالـه داد ئې راکولې

کاش چې تول عمر وړوکې مور مې کور کښې گرځیدلې
مور ځما ژوندې وې دعاگانې ئې کولې

کاش چې تول عمر وړوکې چې سّحر تخلص نۀ وے
مور ځما ژوندې وه پـه خپل نوم بـاندې بللې

کاش چې تول عمر وړوکې کله پلار چې زۀ وهلې
مور ځما ژوندې وه دې لـه پلاره خلاصولې

کاش چې تول عمر وړوکې بے سبق کۀ لوئیدلې
مور ځما ژوندې وه دے سبق لـره لیږلې

کاش چې تول عمر وړوکې زۀ ناوخته پاسیدلې
مور ځما ژوندې وه دې په چغو پاسولې

کاش چې تول عمر وړوکې، ما هیڅ کار هم نۀ کولې
مور ځما ژوندې وه دې په زور په ما کولې

کاش چې تول عمر وړوکې په هر څۀ خفه کیدلې
مور ځما ژوندې وه دې په زور پُخلا کولې

کاش چې تول عمر وړوکې په هر څۀ کښې شرمیدلې
مور ځما ژوندې وه ماله داد ئې راکولې

کاش چې تول عمر وړوکې مور مې کور کښې گرځیدلې
مور ځما ژوندې وې دعاگانې ئې کولې

کاش چې تول عمر وړوکې چې سَحر تخلص نۀ وے
مور ځما ژوندې وه په خپل نوم باندې بللې

کاش چې تول عمر وړوکې کله پلار چې زۀ وهلې
مور ځما ژوندې وه دې له پلاره خلاصولې

کاش چې تول عمر وړوکې بے سبق کۀ لوئیدلې
مور ځما ژوندې وه دے سبق لره لیږلې

## کاش چې تول عمر وړوکې

کاش چې تول عمر وړوکې کله زۀ بیماریدلې
مور ځما ژوندې وې مې په سر ئې لار رابنکلې

کاش چې تول عمر وړوکې مې سحر تخلص نۀ وے
مور ځما ژوندې وه په خپل نوم ئې رابللې

......★★★......

# غزل

مۀ کوه خوبونه دَسبا څۀ پته نه لگی
ویښ اوسه دنیا کښې دَ دنیا څۀ پته نه لگی

هر طرف ته یاره طوفانونه سیلابونه دی
خس به شي خشاك به شي دَبیا څۀ پته نۀ لگی

دنن خبرې یاره !تۀ په نن وکړه
دنیا خوبے وفا ده دَ وفا څۀ پته نۀ لگی

ساعت کښې به وی خیر او په ساعت کښې دنیا ورانه شی
ژوند خطر خطر دے بیا دَ چا څۀ پته نۀ لگی

گیر چاپیره گرځی دادَ باز هسې غوتې وهی
مرگ یوه هوا ده دَ هوا څۀ پته نۀ لگی

نن په دنیا ژوند کا نن ژوندے سحر
ژوند عجب آفت دے بیا څما څۀ پته نۀ لگی

......★★★......

# غزل

مۀ کوه خوبونه دَسبا څۀ پته نه لگی
ویښ اوسه دنیا کښې دَ دنیا څۀ پته نه لگی

هر طرف ته یاره طوفانونه سیلابونه دی
خس به شي خشاك به شي دَبیا څۀ پته نۀ لگی

دنن خبري یاره !تۀ په نن وکړه
دنیا خوبے وفا ده دَ وفا څۀ پته نۀ لگی

ساعت کښې به وی خیر او په ساعت کښې دنیا ورانه شی
ژوند خطر خطر دے بیا دَ چا څۀ پته نۀ لگی

گیر چاپیره گرځی دادَ باز هسې غوتې وهی
مرگ یوه هوا ده دَ هوا څۀ پته نۀ لگی

نن په دنیا ژوند کا نن ژوندے سحر
ژوند عجب آفت دے بیا ځما څۀ پته نۀ لگی

......★★★......

# ژبه

ژبه دې دَ پاره نهٔ ده چې وئیلې شي ټوله ورځ
زړګي دې دَپاره نهٔ دے چې مستې شي ټوله ورځ

دومره څهٔ بلدې خوشحاله چې خوشحاله خوشحالي کړې
خُله دَ دې دَپاره نهٔ ده چې خندیږې ټوله ورځ

نوې نوې دي خيالونه نوې نوې دي فکرونه
تهٔ دنیا وته پسخیږې او پسخیږې ټوله ورځ

دومره بس ده چې وختونه ښهٔ تیرېږې
خر خونهٔ ئې تهٔ انسان ئې چې چليږې ټوله ورځ

ځان ته وګوره ځان وپيژنه څهٔ ئې
تهٔ دَ خلو روکندولې ئې تهٔ رژیږې ټوله ورځ

ګوره سپنې تمامه ورځ هسې غپیږي
بے معنی لکه دَ سپو هسې غپیږې ټوله ورځ

مونږ همیش به لټه نهٔ یو پاره ځو به
ئی په فکر کښې سحر تهٔ ویریږې ټوله ورځ

★ ★ ★

# مستزاد نظم

څوک دَ چا خیر خواه نیشته — هسې رواجونه دي
څوک دَ چا نیک خوا نیشته — هسې دا رسمونه دي
څوک دَ زړۀ دَ چا نیشته — هسې دا وختونه دي
چاکښې هم څه وفا نیشته — دا عشق هسې دردونه دي
خُلنه دَ چا رسا نیشته — هسې ژبانونه دي
تول عمر، دنیا نیشته — هسې امیدونه دي
دلته کښې بادشاه نیشته — هسې دا تختونه دي
لوئې بل دَ الله نیشته — خام زمونږ خیالونه دي
امید مې دَ سبا نیشته — اوږدۀ زمونږ کارونه دي
څوک هم دلربا نیشته — خالی زمونږه زړونه دي
خُوږ زما او ستا نیشته — دَخپلو تش نومونه دي

دَ درد مې انتها نیشته
دَ سحر څکه شعرونه دي

......★★★......

# غزل

دخلقو نه چې لرې ئې وختونه به دې ښۀ وی
په خلقو کښې چې لوسې وختونه به دې څۀ وی

سترې به دې زړۀ کړی سوزیږی به دې زړۀ هم
آرام به درنه لاړ شی سکون به دې هم نۀ وی

توبه توبه له خلقو تر ښځ وهی خپل ځان ته
بې حسنه بې پروا وی اخلاق به دې تراخۀ وی

دَ خلقونه جُدا شه تۀ ګوره بیا دنیا ته
دَ خلقو نه شه لرې هر څۀ به دې خوارۀ وی

څۀ شوی دی په چا چې پروا لری دَ بل
شکوې شکایتونه هر څۀ به دې په زړۀ وی

سحرا ځان به ورك کړې دَ خلقو په بهیر بهار کښې
دَ خلقونه چې لرې خیالونه به پاخۀ وی

★★★

# غزل

ښکلې ښکلې دَ یار مخ ښکلې مخ ته خفه کیږم
ښکلې سترګې کتوری، زۀ ئې سترګو کښې ډوبیږم

څومره ښکلې دَ یار مخ دَ انار هسې ښائسته
دی ډوغلې پکښې دوه سر مې ګرځی ور غورزیږم

ښکلې خُلـه ښکلې غاښونه، ئې دَ پیار ډکه خندا
دهیلۍ غوندے ئې غاړه، زړۀ مې وائی ترې تاویږم

ښکلې ملا ښکلې ئې شا،ښکلې ښکلې ئې پایان
چې زۀ ووینم دا، بیا نشه نشه ګرځیږم

ئې په پخپله څومره ښکلې تا ښائسته څنګه پیدا کړۀ
دا هنر د سحَر نۀ دے، تا په ښکلو زۀ شیدا کړم

......★★★......

# غزل

ښکلې ښکلې دَ یار مخ ښکلې مخ ته خفه کیږم
ښکلې سترګې کتوری، زۀ ئې سترګو کښې ډوبیږم

څومره ښکلې دَ یار مخ دَ انار هسې ښائسته
دی ډوغلې پکښې دوه سر مې ګرځی ور غورزیږم

ښکلې خُله ښکلې غاښونه، ئې دَ پیار ډکه خندا
دهیلی غوندے ئې غاړه، زړۀ مې وائی ترې تاویږم

ښکلې ملا ښکلې ئې شا،ښکلې یښکلې ئې پایان
چې زۀ ووینم دا، بیا نشه نشه ګرځیږم

ئې په پخپله څومره ښکلې تا ښائسته څنګه پیدا کړۀ
دا هنر د سحَر نۀ دے، تا په ښکلو زۀ شیدا کړم

......★★★......

# مېره مور

مور چې دې مېره شي، نو خپل پلار به دې پلندر شي
هر څـهٔ دې قبضـه کړي، دې دَ وچې سکندر شي

مور چې دې مېـره شي نـو زړګې بـه دې پرهر شي
ځوئـې ئـې کـله واخلـي دَ بـل کلي مسـافر شـي

مور چې دې ژونـدې وي نـو جادو وي چيچل نـهٔ کا
پـلار تـوره بـلا شـي، بيـا دَ کرښې نـه بهر شي

اوّلـه چې ژونـدئې وي دَ هـاتهي غوږ کښې اودهٔ وي
دوئمـه چـې دې اوکـړي نـولـه ظلم نـه خبر شي

نـهٔ پـو هيـږي ځـان بـاندې نشـه خمـار خمار وي
تـوکـري دَ ګـنـده ډکـه ئې بهيـږي دا پـه سر شي

اوبـهٔ بــه خـړوي، انـې بـانـې بــه درلــه ګوري
هرڅهٔ ترې نـه هيرشي بيا پلار نهٔ وي غضنفر شي

مور چې دې مېره وي پـلار دَ ښځې تش دلبر شي
اوّل ئې خپـل بچي وي بيـا بچو نه هم منکر شي

مـهٔ اخلـې خپـل ربّـه ! دَ بـچـو نـه خپلـه مور !
مـور چې دَ چا مړه شي نو بچي ئې در په در شي

هسـې دَ هـوا خبـرې نـهٔ دي مـاليـدلـي ....
يـاره ! بيـا پـلاّر نـهٔ وي، پـه بچو باندې ډير بر شي

خـرابـو تـه بـه ښـهٔ وائـي، او ښو تـه بـه خـراب
زړهٔ بــه درلــه اوسيـزي بيـا شعـر شي سحّر شي

......★★★......

# فنا

انسانه ته لږ پام کړه درته ګرانې مرحلې دي
ته ځې به له دنیا نه دَ ژوندون یو شولمحې دي

نن راشې سبا درومې عجیبه غونډې قیصې دي
اے یاره ! ځما یاره ! په ژوندون رسوا کیدل دي

چل ول کښې به ته زور شې دلته یار بوړاکیدل دي
دَخپلو دَ پردونه، له خوږونه دلته یار جُدا کیدل دي

ژوند نه دی سوزول کړی دا دَ اور توری لمبې دي
انسانه ته لږ پام کړه دلته ګرانې مرحلې دي

راتلل دے یاره نیشته په میرو کښې اوسیدل دي
زړا به چرته نه وی په تیرو کښې اوسیدل دي

تیریږی زندګی یاره یو شو ورځې چرچې دي
انسانه ته لږ پام کړه درته ګرانې مرحلې دي

په غتو به ته ګورې دا هر څۀ به پاتې کیږی
بچی به درته ژاړی خپل زړۀ به دې خوږیږی

دا هر څۀ به دَبل شی دا دنیا به دې ورانیږی
دا خبرې نوې نه دی ځمایاره !دا زړې دي
انسانه ته لږ پام کړه درته ګرانې مرحلې دي

یریږه دَ دې ځائې نه هغه تنګ ځائې ته ورتلل دی
نۀ لار شته نۀ ئې ور شته تول عمری بندی کیدل دی

خوږه خوږه دنیـا ده، دې دنیـا نـه ختمیدل دی
انسان عجیبه شې دې عجیبه ئې ورځې شپې دی

انسانه تۀ لږ پام کړه درته ګرانې مرحلې دی

تۀ پروت په تورو خاورو کښې ذرې ذرې به کیږې
دَ خاورو کوټګئې کښې تر قیامته به اوسیږې
تۀ ورك به له دنیا شې پته نیشته څۀ به کیږی
دنیا غجیبه توقه عجیبه غوندې اسرې دی

انسانه تۀ لږ پام کړه درته ګرانې مرحلې دی

داژوند ډیر مختصر دې زما یاره سم ئې تیر کړه
دنیا نه تۀ قلارشه دے ته شا کړه سم ئې هیر کړه
بیغتۀ راځی وختونه دادې وار دې نن ئې زیر کړه
سحَروائی په شعر داروانې سلسلې دی

انسانه تۀ لږ پام کړه درته ګرانې مرحلې دی

......★★★......

# ارمان دے مسلمانه

په تللو کښې دهوکه
په راتللو کښې دهوکه
اخستلو کښې دهوکه
خرڅولو کښې دهوکه
په کرلو کښې دهوکه

تازده کړې له شیطانه
ارمان دے مسلمانه

ریبلو کښې دهوکه
کټ کولو کښې دهوکه
جوړولو کښې دهوکه
ورانولو کښې دهوکه
ورکولو کښې دهوکه

داکار نۀ دے له انسانه
ارمان دې مسلمانه

ښیئلو کښې دهوکه
زده کولو کښې دهوکه
اودریدلو کښې دهوکه
کښیناستلو کښې دهوکه

په وئیلو کښې دهوکه

داقصه شوه ډیره گرانه

ارمان دے مسلمانه

ژړیدلو کښې دهوکه

خندیدلو کښې دهوکه

راوستلو کښې دهوکه

په بوتللو کښې دهوکه

گرځیدلو کښې دهوکه

کوم خوالاړ شوله دنیا نه

ارمان دے مسلمانه

بازارونو کښې دهوکه

دفترونو کښې دهوکه

هوټلونو کښې دهوکه

سفرونو کښې دهوکه

په کورونو کښې دهوکه

دازهٔ نهٔ وایم له ځانه

ارمان دے مسلمانه

رور دَ خور سره دهوکه

خور دَ رور سره دهوکه

لور دَ مور سره دهوکه

مور دَ لور سره دهــــوکه
خسر اینګور سره ذهوکه

تول عالم دے پریشانه
ارمان دے مسلمانه

امیرانو کښې دهوکه
فقیرانو کښې دهوکه
ملنګانو کښې دهوکه
په خپلوانو کښې دهوکه
ملایانو کښې دهوکه

سَحرمۀ کړه نور بیانه
ارمان دے مسلمانهٔ !

...... ★★★ ......

داقصه شوه ډیره ګرانه

ارمان دے مسلمانه

ژړیدلو کښې دهوکه

خندیدلو کښې دهوکه

راوستلو کښې دهوکه

په بوتللو کښې دهوکه

ګرځیدلو کښې دهوکه

کوم خوالاړ شوله دنیا نه

ارمان دے مسلما نه

بازارونو کښې دهوکه

دفترونو کښې دهوکه

هوټلونوکښې دهوکه

سفرونو کښې دهوکه

په کورونو کښې دهوکه

دازهٔ نهٔ وایم له ځانه

ارمان دے مسلمانه

رور دَ خور سره دهوکه

خور دَ رور سره دهوکه

لور دَ مورسره دهوکه

# تول عمر

کاش چې تول عمر بهار وي
ښکلې ښکلې مې دلدار وي
سُور په سرو ګُلو ګلزار وي

دلته تول عمر سنګار وی
کاش چې تول عمر بهار وي

کاش چې تول عمر ځوانی وي
مې دَ زړهٔ ښکلې مستی وي
تولـه تولـه خوشحالی وي

تل په خواکښې مې خپل یار وي
کاش چې تول عمر بهار وي

کاش چې څوك نهٔ ژړیدلې
دلته څوك نهٔ رژیدلی
نهٔ هیڅوك خفه کیدلې

چې هر څوك هر چانه ځار وي
کاش چې تول عمر بهار وي

یار آخر فنافنا ده
عجیبه غوندې غوغا ده
ځما پاتې دلربا ده

کاش چې تول عمر چغار وې
ښکلې ښکلې نوبهار وې

یار آخر کښې مړهٔ کیدل دي
دې دنیا نه آخر تلل دي
یار آخر خاورې کیدل دي

ماښام نهٔ وې تل سحر وې
کاش چې تول عمر بهار وې

......★★★......

# نصیحت

دَ خلقو نه جُدا شه زندګی به دې رنګداره شی
خلقو کښې چې اوسې زندګی به دې ییکاره شی.

څوك به چاله څۀ ورکړی بې له لوئې نقصانه
زړۀ به درله وسیزی، هر څۀ به بیماره شی

ځان له به آرام مومی ځان له به سکون مومی
خلقو کښې چې اوسې زندګی به دې مرداره شی

هر سړې په ځان دې بل ته نۀ ګوری
لرې شه له خلقو زندګی به دې داغداره شی

ځان له چې ژوندون کوې، بې تخته بادشاه بۀ ئې
ګرځه بهارونو کښې هر څۀ به ګلزاره شی

لرشه اتنړونو نه، لرشه محفلونو نه
څۀ به ځان دَ پاره شې، څۀ به خدائې دَ پاره شې

خلقو کښې چې اوسې په آخره کښې پردې به شې
لرې چې دَ خلقو اے سَحر نو هرڅوك به دې دلداره شی

# ښهٔ انسان

ښـهٔ انسـان هغـه دې چې سلوک ښـهٔ دَ هر چا کوی
ښـهٔ انسـان هغـه دې چې پـه رونړ تندی خندا کوی
ښـهٔ انسـان هغـه دې چـې خاطر زما او ستـا کوی
نیت به ئې صفا وی، دې په زړهٔ کښې غوندان نهٔ ساتی
خیـال ئې وی روان دې په خپل خیال کښې خندان نهٔ ساتی
نهٔ غـاپی بـے ځـایـه دې پـه خُله کښې سګان نهٔ ساتی
ښـهٔ انسـان هـغـه دې چې خبرې ښـهٔ صفـا کـوی
ښـهٔ انسـان هـغـه دې چـې سلوک ښـهٔ دهر چاکوی
ښـهٔ انسـان هغـه دې چې بـے لـوثـه بې غرضـه وی
بـد خـو هـمیشـه یـاره ! بې دینـه بـے مـذهبـه وی
دروغ نـهٔ وائـی خـلقـه ! ښـهٔ انسان بـه تـل پـه سچه وی
ښـهٔ انسـان هـغـه دې چې خلـوص او ښـهٔ وفـا کـوی
ښـهٔ انسـان هغـه دې چې سلوک ښهٔ دَ هر چا کوی
ښـهٔ انسـان هغـه دې چې بـه دې دنیـا پرست نـهٔ وی
درویـش بـه وی ګدا بـه وی بـه دې هوا پرست نـهٔ وی
سـاده بـاده بـه اوسـی خـوبـه دے نُما پـرست نـهٔ وی
ښـهٔ هـغـه انسـان دې نـهٔ پـروا ددَے دنیـا کـوی

ښـهٔ هغـه انسـان دې چې سـلوك ښـهٔ دَ هر چاكوى

ښـهٔ انسـان هغـه دې چې دے خيـال پـه زندګې كوى

اوسـى پـه احتيـاط دلتـه دې پام دَ بـنـدګـئـې كوى

ځـان سـاتـى لـه اوره او پـرهيـز دَ ګـنـدګـئـې كوى

ښـهٔ انسـان هغـه دې چـې دې غـم دَ خپل سبا كوى

ښـهٔ انسـان هغـه دې چې سـلوك ښـهٔ دَ هر چاكوى

ښـهٔ هـغـه انسـان دې چې حـلال او مـردار پيـژنـى

ښـهٔ هـغـه انسـان دې چې غـلام او سـردار پيـژنـى

سـحـر! ښـهٔ هغـه دے چې دې پردې او خپل يار پيژنى

ښـهٔ هغـه انسان دې چې خپـل ځان باندې پروا كوى

ښـهٔ هغـه انسـان دې چې سلوك ښـهٔ دَ هر چا كوى

......★★★......

# پردی خلق ښنگه ښهٔ وی

پردې خلق ښنگه ښهٔ وی، خپل به دې په سر وهی
زړهٔ بــه درلــه سیــزی تــل ،خپل بــه دې تـبـر وهـی

زړهٔ کښې به څهٔ نهٔ لرې ستا به عزتونه کړی
خپل به دې تل پښې وهی یا به دې وزر وهی

قدر دې پردې کوی ،ستا به تل خاطر کوی
خپل به خپل بدل اخلی، تا به برابر وهی

پردوتـه بـه تـهٔ خـوږ لـگـې خپلو ته به بد لگې
پردې به دې په گل وولی، خپل دې په خنجر وهی

تاته به سم گوری نه، تانه به خپل ډډه کړی
ځان نه به دې بر گڼړی، بره به دې پَر وهی

پردې درسره مینه کړی ،خپل به دښمنی کوی
بل ځائې به دے نهٔ وهی، خپل به دے ځیگر وهی

پردې به دې په زړهٔ کښې ږدی، خپل به دې تو کی یاره
تـابــه سـم زغـمـې نـهٔ شې ستابـه کـروفـر وهـی

وگوره پـخپـلـه یـاره، وگوره !کۀ نـهٔ منې
هم به دې ماښام وهی بیا به دې سَحر وهی

# نصیحت

ځان له خپل برابر ګوره، دهغوی سره دوستی کړه
ځان له ښکلې دلبر ګوره، نو هله پرې ځان ستی کړه

هلته بدې لګي یاره ! چې دَ چا برابر نهٔ ئې
دا خپل دروند ځان به دې سپک کړی دهمسرو ځان جوتی کړه

څوك دَ چانه اوچت نهٔ وی څوك دَچانه څهٔ ښهٔ نهٔ وی
کۀ دې مخکښې بے خودی کړه، خودداری اوس سمدستی کړه

چاته سپې سپې مهٔ شه یاره! په سپیتوب ده ډیره ګرانه
پاسه باز غوندې پرواز کره په همت ځان دولتی کړه

څۀ به خلق ،څۀ خپلوی، څۀ به یاری کړی
اے سحؔر ځان اوچت کړه په دنیا ځان همتی کړه

...... ★★★ ......

# غزل

ورکه دې دنیا شي؟ د نیا کارونو سترې کړم
هیڅ مې حاصل نهٔ کړه، هر سبا کارونو سترې کړم

څنګه ئې دنیا تهٔ، د نیا کارونو سترې کړم
روح مې مینې سترې، او جدا کارونو سترې کړم

ښکلې دا دنیا ده، زما ډیره زیاته خوښه ده
خلق بې وفا وی، د ښکلا کارونو سترې کړم

دا دنیا فانی ده، زهٔ وفا ور پکښې غواړمه .....
دا د بې وفاؤ دنیا ، ډیرې وفا سترې کړم

زهٔ ور پسې ګرځمه ، دا ښکلې دنیا غواړمه
هیڅ م حاصل نهٔ کړهٔ ، په رښتیا کارونو سترې کړم

زهٔ جوړ لیونے یم ، له دے خلقو وفا غواړمه
مینې د یار سترې ، د اشنا کارونو سترې کړم

ورکه دے دنیا شی ، د دنیا کارونه ورك دے شی
سحرا خطا کیږے ، د خطا کارونو سترې کړم

...... ★★★ ......

# غزل

کله په رقیب لګې کله ته په ما لګی
نور مې خواله مه راځه ، ته چې په هر چا لګې

ستا سره مې مینه ده تهٔ ځما لیلٰی لګې
زړهٔ دې رانه وړې دے تهٔ مې محبوبا لګې
تا به زه د زړه د کوره اوباسم ستا یاری به نهٔ کړمه
مینه کړے رقیب سره ، څنګه محبوبا لګې

دا راته درغ وائې یاره چې زهٔ ستا یمه
کله مې دشمن سره ، کله ته په ما لګې

ما خو وے زما ئې ته، یاره د بل چا وے تهٔ
کله کله وینم دے ، رقیب ته په خندا لګې

داسې مینه نهٔ کړمه، مینه کښې شریك نه وی
خاندے هم رقیب سره، هم ماته په ادا لګې

نور مې خواله مه راځه ، خپل زړګې به صبر کړم
نور مې یاره نهٔ لګې، تهٔ چه په هر خوا لګې
ماساتې جدا جدا، زړه دے رقیب سره
یمه زهٔ تنها تنها ، مانه تهٔ جدا لګې

کله یاره څنګه ئې، کله یاره څنګه ئې
کله باوفا لګې، کله بې وفا لګې
ظلم تهٔ په ما کوې، یاری چه د بل چاکوې
زړه بانددې مې نه لګې، نهٔ مې خپل اشنا لګې

رقیب باندې زهٔ بد لګم دښمن دے دښمنی کوی
دښمن چه خوا کښې نهٔ وی یاره بیا راته صفا لګی
یاره چه یاری شوه دا ستا چې دالداری شوه دا
تهٔ چه خیال زما نهٔ کړے، بیا به ته د چا لګې

نه رانیزدې کیږې ته، تهٔ زما نه ډډه کړے
څه رنګه دے مینه ده، څهٔ رنګه پخلا لګې

نوره یاری نهٔ کوم زه په تا خبر یمه
نه په محفلونو کښې، نه مې په تنها لګې

ته چه یاره داسې کړے، ټول عمر به ورانه وی
نه مې ستا ښکلا خوښه، نه مې دلربا لګې

اوسوزیدم یاره زهٔ تا په مینه پوه نه کړم
ځکه داسې لیکې اے سحر وار خطا لګې

......★★★......

# غزل

چا کښې پر د سُرخاب نۀ وی
د چا بل څه ماب نه وی

تول پیدا له یوې خاورې
څوك پیدا د بل آب نه وی

یو آدم او یو انسان دے
د چا بل څه حساب نه وی

چې د ځان په حقیقت هم نۀ پوهیږی
دۀ نه بل یو دواب نۀ وی

که لوئي ده، د الله ده .......
دۀ لیدلے څه آفت او عذاب نۀ وی

تۀ فقیر ئې ځان فقیر گڼه سحرا!
په قیامت به دې بل هیڅ یو جواب نۀ وی

.....★★★.....

# غزل

کـه جـانـان دے لاپـرواه واخـطـانشـې زړګـيـه
کـه لـه تـا مـرور تـلـے پـه ژړا نشـې زړګـيـه

کـه جـانـان دے پرواه نـه کـا لاپروا نشـې زړګـيـه
دلـربـا کـه بـے وفـا دے بـې وفـا نشـې زړګـيـه

خيـر دے خير دے زۀ دا خپل قسمت به څه کړم
دلـربـا کـه جـفـا کـاندی ، تـۀ خفا نشـې زړګـيـه

يـوه ورځ بـه ميـنـه راولـی جـانـان تـاتـه پخپلـه
سرپـه پښـود صـنـم مه ږده بې خدا نشې زړګيه

مـزه داسې ميـنـه کـاندی چې دلبرو تاتـه راشی
د سـحـر ليـونی عشـقـه! ورپخلا نشې زړګـيـه

...... ★★★ ......

"دوستی او یاری"(آزاد نظم) (ترجمه د انگریزی ژبې نظم نه)

یاری زر او زور نهٔ غواړی
یا پړ قیدلے ، دلفریبه دهوکه
د تعریفونو چاپلوسو نه لرے
هسې خندا نه غواړی
د تنگ نظرئ نه..........
یاری کرکه کوی..........
په خوشحالئ خوشحالئ دا خپل مقصد ته رسی
که زبانی یا عملی وی نو هم ........
د نا امیده سترې شوی خلقو
دا حوصله زیاتوی..........
زړهٔ له قرار ورکوی..........
د بزدلانو کښې غیرت اچوی
انسان غلطو نه په ډډه ساتی..........
د آخرت سفر ته لار جوړوی
دا بے غرضه او خالصه یاری ......
د انسانی ژوندون معیاد اوږدوی
ډیر اوږدوی .......
ډیر پلنوی .........
او ډیر ئې کلك ساتی
د انسان تعلق ...........
د بل انسان سره ..........
دکل جهان سره ..........
د پاك سبحان سره.......
ښهٔ وی ............
یاری او دوستی

# غزل

هیڅ بـه تري جور نـه کړے کـه بادشاه د کل جهان شي
لانـدې بـه راپـريوزے، کـه اوچـت تـه پـه آسمـان شي

يـوه ورځـې بـه پـروت ئـې تـا کـړه خـلـه بـه نيولـی وی
مـرګ بـه دے ميلـمـه شی کـه قـارون يا تـهٔ هامان شي

تـاخـو پـه دنيـا لـکـه د مـار هسـې چـجـه کـړے
زهـر بـه دے تـوې شی ،کـه مضبـوط تـه پـه ګردان شي

څو مره چه اوچت شی، دا دستور دے هو مره د زرکوی
سـر بـه دے را تيـټ شی يـاره تـه بـه پـه خپل ځان شي

مـه ځـه بـره مـه ځـه اے سـحـر بـره تلـے نـه شي
ګيـر بـه پـه پنجره کښـې تـه د پاك غنی سبحان شئ

......★★★......

# ښکلی خلق

ښکلی صرف کړول کا ښکلی صرف زړه چاودل کا
عجیبه وی د دوی مینه تش په اور باندے سیزل کا
ستا نه ځان به ساتی لرے په خنجر باندے وژل کا
په هیڅ رنګ نه نزدې کیږی دوی دلرے نه خندل کا
مینه تشه خندا نهٔ وی په ښکلا دوی تنګول کا
سترګې تورے په رانجو کړی په خوږو سترګو وهل کا
دوی دا زړهٔ به درله مړ کا په زړه اور رډې بلول کا
چرې مینه ، وفا نهٔ کړی دوی دلرے نه کتل کا
ښکلی هیڅ دچا څهٔ نه وی دوی بس هسی زړه وړل کا
مې توبه تو به له ښکلو ښکلی خلق شرمول کا
نهٔ به و یښ نه به اوده ئې هسې هسې ځنګول که

توقې نه دی دا راښتیا دی
سَحر ځکه دا وئیل کا

......★★★......

## خپل کور

د ختو دے یو کور وے پکښې ځان له او سیدلے
ارمان دے خپله کوره
د خلقو نه پناه وے پکښې زه اوده کیدلے
ډیر تنگ یمه له شوره
آرام مې ډیر کولے مې وجود دمه کولے
دا ستړے زړه مې گوره
نه لگی اتڼنې یاره، اتنړ مې زړه سیزلے
دا واوره زما روره
لمن به دے او چته پکښې اوسه زړه چاودلے
لړ سوې زړه و گوره
چې ځان له پکښې ناست وے پاسیدلے گرزیدلے
دا وائمه له جوره
زما قسمت کښې نشته خپل قسمت یمه وهلے
دا برخه وی له موره
آرام باندے چې ناست وے ژړلے که خندلے
وجود مې دے رنځوره
سحر حالونه وائی، مې زړگې دے دردیدلے
ډیر وائمه په زوره

......★★★......

## رباعي

چې پښه ږدې ورته ګوره　　　　درته وائمه اے روره
ګنې مات به په تبر شی　　　　ځان ساته ل خپله زوره

## رباعي

صبر صبر که انسانه　　　　دا نور دے له آسمانه
په لږ صبر ګټه ډیره　　　　تادی کړی به دې حیرانه

## رباعي

ځان ساته له هر ګزاره　　　　زندګی به دې شی خواره
که دې سر او سترګی لاړې　　　　له ژوندون به شی بیزاره

## رباعي

ژبه بنده کړه اے یاره　　　　د مطلب خبرې سپاره
چې ته پوه په کائنات شې　　　　خاموشی ډیره زورداره

## رباعي

په هیڅ څۀ به، شوك خپل نه کړے
په اوبو به، اور، بل نۀ کړے
از مائیلی مې خپلوان او آشنایان
یار! ازغی خووی ازغی، ته به ئے ګل نۀ کړے

......★★★......

# ځېلی شکلې دلربا ته!

چې مې ځوانی لاړه شی یاره! نو بیا څله راځې
چې مې ژوندون خاورې ایرې شی بیا به هله راځې

ظالمه یاره! تا بیلتون باندے ستی پتی کړم
چې زه لوګې لوګې شم ولې بیا دلبره راځې

بیا به ماښام د ژوندانۀ وی تور تمونه به وی
بیا به تالا والا ګلونه تۀ بلبله راځې

بیا به زه نۀ یم بیا به ذا وختونه نه وی ګلې
را پسې ډیر به ارمانی ،بیا به بے دله راځی

افسوس افسوس دلبره! ستا هغو یادیږ مه نه
اوږدو مودو کښې یو دوه ځله یا درې ځله راځې

ټول عمر یاره! مینه او ژوند خو نۀ وی
بیا به په قبر اور په څلی د زړه سره راځی

مخ نه ښکلا، سترګے بې نوره، زړه نه مینه دړومی
زندګی لاړه، ته سحر له به بیا ګله راځې

......★★★......

# نظم

څومره ډیر وختونه تیر شو
څومره ډیر خلق فنا شو

څومره ډیرې ورځې لاړې
څومره نوې راپیدا شو

څومره ځي په بله مخه
څوك بادشاه او څوك ګدا شو

ژوند کښې څومره سختې سختې
انسانان څومره رسوا شو

د انسان په دے کار نشته
ډیر افسوس چه په هوا شو

څومره ډیر زمونږ نه مړه شو
نن ماشوم صبا بوډا شو

سحر ګورې چې دنیا ته
ځکه خیال ئې په ژړا شو

★★★

# عقلونه (نظم)

زۀ په در کښې نۀ يم درته کړمه څو خبرې — دايـا دې لــــره يـاره
د شونډو د سر نه دی داد تل نه هم ژورې — د زړه په غوږ وواوره

الله له ټولو لوې دے، دا خبرے ملغلرې — مـخلوق هم بے کاره
پردی مالونه م،مه خوره مې د زړه دی دا خبرې — په غم به شی بيماره

تنها د خلقو اوسه، درته وايمه گــو هرې — شی ژوند به دے گلزاره
بغير رنړا نه مه ځه، وی د شپې کندې کپرې — پــه درز بــه شې گزاره

اکثر خاموشه اوسه، شې خبرې بے اثرې — کـړی ځـان بـه بې قـاره
سوالونه د چا مه کړه، انسان خپله دے سوالگرې — خپل ځان ساته خوداره

ډير عشق د چا مه کړه، بې وفا هميش دالدارې — مـا ميـنـه کـړې يـاره
د ژوند سفر خطر دے سنجيده شه په دې لارې — ځـان بچ سـاتـه دلداره

چې ځې نو مخکښې گوره، خپل قلم بلندې نگلرې — شـی لانـدې بـه گذاره
دنيا خو په قسمت ده که څومره تۀ هوښيارې — مـاليـدلـې دنيـا داره

کړی خبرې مه کړه، که هر څومره زوروري — کـړه خبـره مـزيدازه
يو ورځ ياره فنا ده د دنيا څۀ تيکدارې — فنا شول ډير بے شماره

سحر! ښۀ شاعر ئی ،د حکمت خبرې څارې — دا گـورئ زمـا يـاره

......★★★......

# بدی

دنیا یاره! د خدائی ده خلقو به شي بدی
دوه ورځې دنیاګی ده د خلقو به شي بدی
نن یو صبا به نهٔ یو ، ورکیږو له دنیا نه
ښه و ګوره خبره دپستیٔ ده د خلقو به شي بدی
که مور شوې نه دې منی که ورېږ شوې ځان زاړې
خبره د مستې ده زمانه د دښمنې ده، د خلقو به شی بدی
فرعون هر چا نه جوړ دے دقارون خویونه ډیر شو
چرچا بس د لوئې ده د خلقو به شی بدی
اے یاره! داسې ژوند کړی چې هر لوری ازغی وی
توبه ، توبه، له زندګیٔ ده، د خلقو به شی بدی
قرآن تاته څه وائی بشر بیا تو کښې لاځهٔ ده
انسان د انسان دوست دے، څه چاره د دوستیٔ ده د خلقو به شی بدی
خپله خورې او خپله ښځې به په خلقو به ته بوج ئې
بې ایمانی ده دا نشته د بې ایمانیٔ ده د خلقو به شي بدی
چې اوو ینی دا خلق ، ناپوهه شی لږ پوهه
دا ځکه سحر لیکی دا موضوع د شاعریٔ ده ، د خلقو به شی بدی

...... ★★★ ......

# غزل

زړه مې ستا نه صبر شه جانانه، بس دے مه راځه
مینه په تا بوج وه تاته گرانه، بس دے مه راځه

ډیرې مینې ډیر غمونو، زړهٔ راله ډیر پوهه کړو
گرانه نه وه مینه، مې ارزانه بس دے مه راځه

غټ کانړې مې اېښې په زړگې چې خواله رانشې
مینې نه دے کرکه کړه، نادانه بس دے مه راځه

دا به وصیت کړمه نزدے خپلو خپلوانو ته
مه ئې پریږدئ جدا ساتئ ځما نه بس دے مه راځه

لاړه زندگی ښکلی ځوانی رانه تمامه شوه
ډیر که پریشانه کښ پښیمانه بس دے مه راځه

دا خو یو بهار وو یو ښکلا ځما د مینې وه
ورژیدم یاره! بے خرانه بس دے مه راځه

مه راځه جانانه! لوگې کیږمه ورکیږمه
خیر که سحر مړ شی له هجرانه بس دے مه راځه

......★★★......

# غزل

يار هم نه خپلیږی ، نو اغیار زهٔ څنګه خپل کړمه
پردی چرته خپلیږی ، نو بیا یار زهٔ څنګه خپل کړمه

زړهٔ کـه ورتـه وچوے دا ځـان کـه کـړې ذرې ذرې
څوك هم نه خپلیږی نو دلدار زهٔ څنګه خپل کړمه

ولـے پـردی کیـږی ، مې ګیلـه تـولـه د خپلو نـه
ګل هم نـه خـندیږی، نو بیا خار زهٔ څنګه خپل کړمه

یار د یار نـه ډډه کړی دوست له دوست نه څنګ کوی
د لارو د کو څو سرې، ریبار زهٔ څنګه خپل کړمه

میـنـه میـنـه لاړه، شـوه د مـخ دنیـا ---
پریږ دوه سـحـرا دنیـا دار زهٔ څنګه خپل کړمه

......★★★......

# غزل جانان

کله چه زهٔ مړ شم تماشې ته به ئې نهٔ پرېږدئ
دا مې وصيت دے جنازې ته به ئې نهٔ پرېږدئ

ژوند بانديې جانان مې خواله نه راتلو —
ځکه دا سې ليکم د کټ پښې ته به ئې نهٔ پرېږدې

ما به دې غوښتلو ، ما به مينه ده کر که کړه
شرې به ئې ځمانه ، د مرګی شپې ته به ئې نه پرېږدئ

ما به يادولو ، خوږ زړګی به مې درد نه کړل
قبر ته به ئې نه پرېږدئ دې خزې ته به ئې نهٔ پرېږدئ

زهٔ ئې ارمانی کړم د وصال لوګې لوګې شومه
سحر ته به ئې نهٔ پرېږدې ، کتنې ته به ئې نهٔ پرېږدئ

......★★★......

## غزل

قاصد ورشه جانان ته د زړګی حالونه و رسوه
د سوی زړهٔ ، سوی ځیګر زما د زړهٔ دردونه و رسوه
جانان ته ووایه زما د زړګی ټول حالونه
حالونه سم ورته بیان که مې د زړهٔ خیالونه ورسوه
ورته دا ووایه زهٔ خواله، دے درتلې نهٔ شمه
زړګې مې و چاودو سورې شو، ورته دا عرضونه ورسوه
خواله درځم که زهٔ څه وایم رسوا کیږم ګلې !
دا مې د زړهٔ خبرې ، دا شعرونه ورسوه
په تا مئین یم عجیبه ده، تا نه لرې لرې
څه فریادونه څه فراق ، څه د وفا سوالونه ورسوه
په ویښه ستا ، په اودو هم ګلفامه! تا یادوی
خیر دے بیا مه ځه، نن مې دا یادونه ورسوه
پټ ورته دا وایه چې له غمه لیونې به دے شم
مینه یو راز دے نن مې دا رازونه ورسوه
دسحر حال باندې خبر که مې دا ښکلې جانان
چې یار خبر وی ورته دا بیتونه ورسوه

...... ★★★ ......

# خپل لونو څوړ سکول ته یو سوچ!!

دلته ښکلی استاذان وو هغه څه شو
دلته نور نور شاګردان وو هغه څهٔ شو
یو ضیاء وو ، بل بدرے او بل غفور وو
نور هم ښهٔ معلمان وو هغه څهٔ شو
درته وائم په رښتیا خلق ورکیږی
د خپل وخت ښکلی ځوانان وو هغه څهٔ شو
دسکول مخې ته به نور چابړی مار ناست وو
چرته تلی هغه ډیر، چې عاجزان وو هغه څهٔ شو
چې اوږده اوږده تهلی به ئې وهله
یو بخفور او بل زرګل چې چپړاسیان وو هغه څهٔ شو
هم به مخ ئې ، هم به ئې ګیرې رنړا کړله
دلته ښکلی بوډاګان وو هغه څه شو
په کمره کښې به بند ناست وو او نن نشته
یو به دنګ او بل به چیت، چې بابوګان وو هغه څهٔ شو
چې په باغ ئې همیش پیرے کولے .......
یو میان باز ،بل ګل رحمان وو هغه څهٔ شو
څو مره ډیره دبدبه به ئې لرله ___
څهٔ شو څهٔ شو د خپل وخت، پرنسپلان وو هغه څهٔ شو

پـه یـو دم بـه ئـی پـه بورډنقشـه راکښلا ........
یو لطیف بل مکمل ډرائنګ ماستران وو هغه څۀ شو
چې پـه یـو آوازبـه ئې ټول میدان خاموش کړو
یـو جبار او بل ماسن ډرل ماستران وو هغه څۀ شو
لـه آوازه بـه ئـې ټول خلق خاموش وو ـــــــ
ښـه دنګ لوړ ښـکـلي قـاریان وو هغـه څۀ شو
یـو مـلا چـې تـاج مـجـمـد وو بـل سـابـیـق وو
درتـــه وایـمـــه زبـرګـان وو هـغـــه څـۀ شو
چې خپـل فـرض پـیـژنـدو بـه ئی، څومره ښۀ وو
څـو مـره ښـۀ ښـۀ نوکران وو هـغـه څـۀ شو
درتـــه وائـم هـغـــه مـړۀ دی، هـغـــه ورك دی
څـۀ خـوارۀ خـوارۀ یـاران وو هـغـه څـۀ شو
اوس سحر پـه خپـل احساس او قلم لیك کړی
مـخـکښـې نـور نـور شـاعـران وو هغـه څـه شو
یـوه ورځ بـه سـحر هم لـه سکول نـه ورك شی
داسـې ډیـر ډیـر استـاذان وو هـغـه څـۀ شو

......★★★......

# سپین ږیری (په یو بیټک کښې)

مه وایه اشنا ته سپین ږیرو راته مه وایه، ډیر وی حریصان
ښه مې ډیر لیدلی په کونتې ځی، یاره ډیر وی لالچیان
په ځان به نهٔ پوهیږی، په دنیا باندې ښه پوه وی
دا بده بلا شی بیا چیچل کا ښاماران
هسې دے راګونجی شی په مخ ئی ګیره سپینه شی
پوهه به پرې نهٔ شې چې انسان دے که حیوان
که نهٔ منې نو ورشه د پیسو مقام له ورشه!
بیا ئې حال وګوره! بوډا څنګه مسلمان
خلق چې بوډا شی، نو اللّٰه ته په ژړا شی
دې کچکول راوخلی، بوډاګان شی ملنګان
ایمان قرآن ئې نهٔ وی، نه ئې ژبه نهٔ ئې خیال
دنیا باندے ځان وژنی د دنیا شی پتنګان
سپین ږیری دے په سپینو، خفه نشی دامې خواست دے
سحؔر ډیر محسوس کړی زړهٔ د تل نه دا بیان

......★★★......

# غزل (خپلې محبوبې ته !!)

زړهٔ دې راله اوچوو تهٔ د خپليدونه ئې
ډيره بې وفائې ته ، هيڅ د ښهٔ کيدو نهٔ ئې
بيا به ارمانونه کړې ، ما رايادوې به ډير
بيا به مې اونهٔ مومې، اوس د پوهيدو نه ئې
هسې دې ميئن کړمه، اوسې رانه لرې ته
ښکلې محبوبا زما، خواله د راتلو نهٔ ئې
تا د پاکې مينې مې، هيڅ قدر ونه کړلو
څه رنګه ميزبان ئې ته، هيڅ د ميلمنو نه ئې
شپه ورځې درديږمه زهٔ خو نازولې يم
تهٔ څو مره سنګ دله ئې هيڅ د خوږيدو نه ئې
ستا ظلم او زور ياره! ځان باندې خبر کړمه
اے نادانه يارا مې ، تهٔ د خبريدو نهٔ ئې
زما د خياله نهٔ ووځې، ستا فکر کښې اوسمه
ته که بې وفائې خير، هم د هيردونه ئې
ډيرې ارادې مې کړې وائم چې دې پريږدمه
څه عجيبه مينه ده ، زړهٔ نه د وتو نهٔ ئې
په چغو که زهٔ وژاړم ، وکړم که آهونه ډير
عشق دې عجيبه غوندې ، سحر د تيکيدو نه ئې

......★★★......

## نظم (رسمونه او حجونه)

په عبادت کښې د رسمونو څۀ دی
دے کښې اشنا د رواجونو څه دی

تا خو د حج نه تماشه جوړه کړه
په دے کښې چته د ښودونو څۀ دی

لکه واده ګرځې، کوڅه په کوڅه
ګوې ستونه دې کښې یاره د ستونو څه دی

سره بوده دئ د لوړې وخت کښې چاله نۀ ورکوې
اے ریاکاره! دې کښې بیا د خیراتونو څه دی

تش یو بولکې او ناوې نۀ وی پکښې
دې کښې د ګاډو د هارونو څۀ دی

کوم صحابیؓ او نبی ځان سره حاجی لیکلے
چې حج دے وکړو دی کښې بیا د لقبونو څه دی

نور د قرآن احادیث نه نۀ ئې خبر .....
دا خو سیالی شوه یاره دے کښې د ضدونو څه دی

سَحَرتـه او ښایه دا په کوم کتاب راغلی
په رسم کښې یار سره د مینې او رازونو څه دی

# غزل

جانانه لاړې د زړهٔ کور مې، نن کنډر پاتې شو
کله دې بار کړه ډیر خفه مې، نن ځیګر پاتې شو

تول امیدونه، خوشحالۍ مې له زړګي اووتې
د پاکې مینې پاك زړګې مې، در په در پاتې شو

پټ پټ سوزیږم ، ایرې کیږم د بیلتون په اور کښې
ایرې ایرې ، لوګې لوګې مې د زړهٔ سر پاتې شو

تورې تیرې مې راخورې شوې د زړګی په سیمه
ښکلې سبا د مینې لاړ زیړ مازیګر پاتې شو

چا ښهٔ وئیلی ، چې پردی پردی وی
په هیڅ هم خپل نهٔ شو سحر نه خپل دلبر پاتې شو

......★★★......

# خپل ښکلی دلبر ته!

چې مې ځوانی لاړه شی یاره! نو بیا څله راځې
چې مې ژوندون خاورې ایری شی بیا به هله راځې
ظالمه یاره! تا بیلتون باندې ذرې ذرې کړم
چې زۀ لوګې لوګې شم ولې بیا دلبره راځې
بیا به ماښام د ژوندانۀ وی تور تمونه به وی
بیا به تالا والا ګلونه ته بلبله راځی
بیا به زۀ نۀ یم بیا به دا وختونه نۀ وی ګلې
راپسې ډیر به ارمانی، بیا به بے دله راځې
افسوس افسوس دلبره! ستا هډو یادیږمه نه
دومره مودو کښې، یو دوه ځله یا درې ځله راځې
تول عمر ژوند او مینه نۀ وی، ګلې.......
بیا به په قبر او په ځلی د زړۀ سره راځې
مخ نه ښکلا، سترګې بے نوره، زړۀ نه مینه درومې
زندګی لاړه ته سحر له به بیا کله راځې

......★★★......

# غزل

ورکــه دې دنیــا شــی د دنیــا کــارونـو سـتـړې کـړم
هیـځ مـې حاصـل نـهٔ کـړل هر سبا کارونو ستړې کړم

دا دنیـا فـانـی ده ، زهٔ وفـا ور پـکـښـې غـواړمـه ......
هـــر څــهٔ بـې وفـا دی او زهٔ ډیـرې وفـا سـتـړې کـړم

زهٔ ورپسـې گـرځـمـه ، زهٔ ښـکـلـې دنیا غـواړمـه .....
هیـځ مـې حاصـل نـه کړه ، په رښتیا کارونو ستړې کړم

ښـکـلـې مـحبوبـا ده ، زمـا ډیره زیـاتـه خوښـه ده
میـنــه میـنـه کـړمـه ، د ښـکـلا کـارونـو سـتـړې کـړم

زهٔ جـوړ لیـونــې یـم ، لــه دې خلـقـو وفـا غـواړمــه
میـنــې د یــار سـتـړې ، د آشـنـا کـارونـو سـتـړې کـړم

ورك دې مـحبوبا شی ، هم دا مینه دې خدائے ورکه کړی
سـحـر پـرې خـطـا کیـږی د خطـا کـارونـو سـتـړې کـړم

...... ★★★ ......

# غزل

خالي لاسونه راشي او دروند پنډ ځان سره یو سي
صفا صفا راغلي، او ډیر ګنډ سره یو سي

ځومره بې وقوفه، په ښه بد هم نۀ پوهیږي
کوي دې ګناهونه، څه پټ او څه ښکاره ځان سره یو سي

چې راشي دې دنیا ته، نو ګډ وډ شي په دنیا کښې
په غیږه کښې تراځۀ، او ځۀ ګل قند ځان سره یو سي

دردونه تکلیفونه، خپل عمل نه هلته جوړ کړي
په خپله ځان بندي کړي، داسې بند ځان سره یو سي

افسوس دریاندې کړمه چه تۀ ځومره بې ضمیره
سحر! بس دے بس دے، څه پسند او ناپسند ځان سره یو سي

......★★★......

# جانانه!! (غزل)

چې په ژوند رالـه رانغلې جنازې لـه مې را مـه شـه
بیـا بـه مړیـمـه جـانـانـه! تماشې لـه مې رامـه شـه
دا خـو دوه ورځـې ژونـدون وو ، داسـې تیـر شـه
بیـا د مړینـې دستـورونـو ، ډرامې لـه مې رامـه شـه
تـاخـو زه تـول وسیـزلـم ، تا زۀ ډیر ارمـان ارمـان کړم
چې پـه ژونـد رالـه رانغلې ، مقبرې لـه مې رامـه شـه
زمـا دا ګـنـاه وه یـاره! تـه مـې خـوښ وې
زۀ ربـتیـا پـه تـا مئـن ووم ، ننداري لـه مې رامـه شـه
ډیـر هـجـران بـانـدې، جـانـانـه لیـونـې شوم
بیـا مې عُـذر لـه رامـه شـه لاس نیـوې لـه مې رامه شه
بیـا بـه ډیر سـو چـونـه وکـړې ، بیـا به ډیر راپسې ژاړې
بیـا مې خـاورو لـه مـه راشـه ، بیـا خزې له مې رامه شه
بیـا نـه وویـنـم پـه مړونـی ، بیا بـه هیڅ بـه نـه پو هیږم
بیـا بـه رسـم د دروغـو ، د کـټ پښې لـه مې را مـه شـه
یـو دیدن هم په ما ګران وو یاره ستا په تول ژوندون کښې
مرګ بهـانـه نـۀ کړې دلبره! تـمـاشې لـه مې رامه شه
مـا بـه هلتـه خدائـے بخښی پـه خپلـه مینـه .......
دعـاګـانـو لـه رانشـې ، فـاتـحې لـه مې رامـه شـه

زۀ دے ډیر عمر په طمع مادې ډیر انتظار کړے
چې مې کور لره رانغلې بیا حجرې له مې رامه شه
سحؔر ډیر ارمانی تلے ، څکه دا شعرونه لیکی
بیا مې قبر له رامه شه ، بیا جنګلې له مې رامه شه

......★★★......

## غزل (عاشق وے)

هغه شپې ورځې مې څه شوې ، چې زړګیه په قلا وے
سمه دمه زندګی وه اے زړګیه تۀ په لار وے
هیڅ هم نۀ وو تول ټوله غریبی وه
سر سرتور وو پښې ابلے بښۀ سردار وے
څه عجیبه زمانه وه ، عجیبه غوندے ژوند وو
تاکه څومره ډیره مینه ، ستا به هر یو کس دلدار وو
هر څه شته خو مزه نشته ژوند سپیره سپیره لګیږی
غمه پټ وے زندګی کښې، څما زړۀ کښې تۀ بسیار وے
زړۀ مې تور دے له هر څه نه، حقیقت رامعلوم شوے
د فنا په سبق پوهه، له ډیر وخته خبردار وے
ټول ژوندون مې په حفګان حفګان کښې تیر شو
تۀ عاشق وے ته له ځایه نه بیمار وے
اوس هر څه ته حفه کیږم زړۀ مې ژاړی........
اے سحؔر! له اوله له ازله غمګسار وے

......★★★......

# غزل (رښتيا، رښتيا)

هيڅ به حاصل نه کا که ته ډير اوکړې کارونه
ستړې به دے ځان شی که ته فتح کړې ملکونه

دلته ډير عالم وو زړه ئې چاودې، ستړې تلې
هيڅ ئې موندې نۀ دی، که ته ډير اوکړې سوچونه

مارغان او ځناور کارونه نۀ کوی تش ښکار کړی
خيته ئې مړه وی، وائم کړه عبادتونه

دا هر څه فانی دی دا ژوندن ډير خطرناك دے
وائی دا هر څۀ ځما دی بيا خالی وی تری کورونه

دوه ورځې ژوندون دے، ته د سلو کالو غم کړې
بيا به هم مونږ نۀ شی، که دا ستا شی تول څيزونه

ډير عالم مې وليد، ما دنيا ډيره کتلې
څکه سحر وائی دا رښتيا رښتيا شعرونه

......★★★......

# غزل (ځما ځوانی)

څه شوه ځوانی مې څۀ شوه، څه شو بهار مې څه شو
څه شو سپرلې مې څه شو ، څه شو ګلزار مې څه شو
ګونه مې زیړه شوله ، دا زۀ خزان وهلے
ښکلې ښائست مې څه شو ښکلې چغار مې څه شو
پریشانه ناست ، بیماره پروت یم چرته غلې غلې
هغه هوا مې څه شوه ، نن هغه زور مې شو
زۀ به خوشحاله ومه، مست به وم بے بهاره
زما ځوانی څه شوله ، هغه ګلزار مې څه شو
زۀ به لمبه لمبه وم زۀ به شعله شعله وم
شومه ایرې ایرې زۀ ، ښکلې انګار مې څه شو
توره تیارۀ شوه، توره شپه شوه ، زندګی لاړله
هغه سبا څه شو، سحر شو، دلدار مې څه شو

......★★★......

# غریبی بده بلا ده

ملنګ به درنه جوړ کړی
به رنګ به درنه جوړ کړی
کلك سنګ به درنه جوړ کړی

دا ورکړه دالله ده
غریبی بده بلا ده

سوالګرے به شې یاره
دم ګرے به شې یاره
باد سرے به شې یارې

عجیبه غوندې سودا ده
غریبی بده بلا ده

کباړ به اخلې یاره
ګرځیږی به دلداره
ژوندون به شی دشواره

نشه ځما اوستا ده
غریبی بده بلا ده

ختې مار به ئې تول عمر
ګل کار به ئې تول عمر
څوکیدار به ئې تول عمر

خدایه څو رنګه دنیا ده
غریبی بده بلا ده

خپلوان بـه دې تـول لـر کـړي د خپلوۍ نـه
دوسـتـان بـــه دې تـول لـر کـړي د دوستـۍ نــه
دستـور دے خلق تښتي غريبئ او د نيستۍ نه
اے خلقه دا سپيره برخه ځماده
غــــريبــــى بـــده بـــلا ده

درديږې به په ځان
ژړيږې به په ځان
خوږيږې په ځان

دا خــوښــــه د مــولا ده
غــريبــى بـده بـلا ده

مزدوري به دے ژوندون شی
رسوائی به دے ژوندون شی
پريشانی به دے ژوندون شی

سخته سخته هر سبا ده
غــريبــى بـده بـلا ده

بے ايمانه به شې ياره
دهوکه به کړے مرداره
د غلو به شې سـرداره

د سـحـر دغــه وينـا ده
غــريبــى بـده بـلا ده

......★★★......

# مرگ

په آخر کښې به شې خاورې که ته اورې که ته نا اورې
که دنیا تول له د تا شي آخری دے تورې خاورې
که ته گل لکه غنتول ئې یا که ونه د نښتر ئې
که بادشاه ئې د مغلو یا اکبر یا بابر ئې
که قارون د زمانې شې که د تخت د سلیمان[ع] شې
په آخره کښې به هیڅ شې، یاره هر څه به ارمان شي
که ته نیمه دنیا واخلې، ستا لښکر د سکندر شي
یوورځ مرگ به درله درشي هر عضو به دے اوتر شي
که ښائسته لکه یوسف[ع] شې او ستا عشق د زلیخې شي
دا د زمکې تل کښې گوره، بیا آخر کښې دا خزې شي
ارسطو غوندې که پوهه شي، افلاطون غونې دانا شي
د دنیا که تاته مخه، په آخر کښې به په شا شي
که ملك ئې او که خان ئې یا که لوئی غوندې افسر ئې
مرگ به راشي تا به یو سی بیا به پروت په سخت بستر ئې
که ته غوارې که نهٔ غوارې، که دې زړهٔ وی که نا زړهٔ
پاتې هر څه به له تا شي، تول به پاتې شي سارهٔ
ژوند نرئ نرئ سیلئ ده په مزه مزه تیرېږی
دوباره دے راتلهٔ نشته، دا هر څه یاره ورکیږی
په آخر کښې به شی خاورې، دا قیصې به شی تمامه
په قلم مې تاته راوړهٔ چې ته پوهه شې گلفامه
ماکتلی، مامنلی، ځکه وائمه په شعر
سحر هم به خاورې کیږی، ځکه زړهٔ ئې دې دلگیر

# غزل

زړې خبرې ورکې شوې دنیا تموله بدله شوه
نوې دنیاګۍ شوله هر خوا تموله بدله شوه

لاړه بخوانۍ دنیا، ورك شو پخوانۍ مخلوق
نوے نوے خلق شو، فضا تموله بدله شوه

هر چا ته دنیا خوښه، مئین په انګریزی دنیا
لاړهٔ پښتانه هم انګریزی شو پختونخواه تموله بدله شو

هسې نمائش شولو، راغلله د رنګ دنیا
وګوره د زړهٔ بازار سودا تموله بدله شوه

چا سره زهٔ کښېنمه، د چا سره زهٔ مینه کړم
سحؔر! مینه ورکه شوه، ادا تموله بدله شوه

......★★★......

# غزل (انتظار)

تهٔ رانغلې انتظار کړمه تر اوسه
نه رغیږمه دلبره لا بیمار یمه تر اوسه

داسې جوښت زړهٔ ته پریوتې نه پوهیږم
تل د زړهٔ دننه اوسې لا غمخوار یمه تر اوسه

ستا به هیر یمه لا به یاد یمه دلبره
پروادار یمه تر اوسه، وفادار یمه تر اوسه

ستا د مینې سفر ډیر ډیر راته ګران شو
نه رسیږمه زهٔ تا ته، لا په لار یمه تر اوسه

په هیڅ رنګه نهٔ ښهٔ کیږم، څه به کیږي
ستا د مینې زنځیرونو کښې په دار یمه تر اوسه

چې ته نه راځې ستا غم، ځما په زړهٔ دے
ستا غمخوار یمه تر اوسه، ستا دلدار یمه تر اوسه

مودې اوشوې د راتلو دې لا آرزو کړم
د راتلو لارې دې څارم، بې قرار یمه تر اوسه

ستا د حسن عجیبه غوندې بیړۍ دی
لا د زلفو په تارونو، ګرفتار یمه تر اوسه

لا په سترګو کښې مې نم د جدائۍ دے....
ډیر خوږیږمه ژړیږم، په زار زار یمه تر اوسه

یو لمحه مې زړهٔ سکون منوندلے نهٔ دے
زړهٔ مې تاپسې غمژن دے بې قرار یمه تر اوسه

دا ستا حسن، ځما مینه، دا دردونه مې قسمت وو
مې جانان وې له ازله، لا بیدار یمه تر اوسه

حیرانیږمه خپل زړهٔ ته، ستا په مینه نهٔ مړیږي
ستا خواستګار یمه تر اوسه، طلبګار یمه تر اوسه

په سحر عمرونه تیر شو، د زړهٔ غم ئې کمې نه کړو
ستا غمونو لیونې کړم غمګسار یمه تر اوسه

# غزل (وصال)

د دردونو، احساسونو به څه وایم.........
له زړګی مې وینې څاڅی، د غمونو به څه وایم
چاته حال وئیلې نۀ شم، څنګه مینه......
پټ دننه ئې ساتمه، د حالونو به څه وایم
دومره مینه، دومره قدر، جانان نه رانزدې کیږی
دا به وی څما تقدیر، د نصیبونو به څه وایم
د هجران تورو تیرو کښې، ربه! زۀ لیونې کیږم
سودائی شو مه جانانه، د ستمونو به څه وایم
هر وخت فکر د جانان کښې، خپل خیالونو کښې خفه یم
شپه او ورځې مې یادیږی، د یادونو به څه وایم
که زۀ ډیر کړمه آهونه، په جانان مې اثر نۀ کا
د سنګ دلو، ظالمانو، د ظلمونو به څه وایم
د وصال په طمع مې ژوند تیر شو
څه یاری وی د یارانو، د خویانو به څه وایم
دیار مینې، جدائی سحر، ملګیر کړو.......
د غمونو د دردونو، احساسونو به څه وایم

## زۀ

دردونه احساسونه زۀ د شعر په ژبه وایمه
خیالونه خپل سوچونه زۀ د شعر په ژبه وایمه

داسې زۀ جانان ته په صفا ژبه وئیلې نشم
شاعر یمه، حالونه زۀ د شعر په ژبه وایمه

......★★★......

# خلق

د خلقو دې نيتونو ته چې ګورمه خوږېږم
د انسان بدو مخونو ته چې ګورمه خوږېږم
هيڅوك چاته په سمه سترګه نۀ ګوري اے ياره!
دې بدو نظرونو ته چې ګورمه خوږېږم
هر څوك وائي چې زۀ يمه، دا بل پکښې لا څه دے
د خلقو احساسونو ته چې ګورمه خوږېږم
د عرض ډکه دنيا ده، په مقصد دنيا روانه........
د دنيا دے، مقصدونو ته چه ګورمه خوږېږم
هر څوك دنيا پرست دے دې دنيا ته سجده کړي
دې دلسې تدبيرونو ته چې ګورمه خوږېږم
د زړۀ دنيا ئې بله وي د خلې وينائې بله ......
د خلقو دے سوچونو ته چې ګورمه خوږېږم
په سپينو سپينو ګيرو د خطا پنډ ئې په سر وي
وېرېږم، حرصونو، ته چه ګورمه خوږېږم
افسوس کومه ياره! دا د رنګ و شرنګ دنيا شوه
د خلقو دے رسمونو ته چې ګورمه خوږېږم
لږ سوچ کوه په ځان لوېـه دنيا بلندې اے ياره!
بې حسه بې ضميره دې سوچونو ته چې ګورمه خوږېږم

دنیا پرستی ډیره شوه، هوا پرستی ډیره.....
د خلقو دې کارونو ته چې ګورمه خوږیږم
اے یاره! غریبی لو عاجزی لاړه دنیا نه.....
کم عقلو، کبر جنو، ته چې ګورمه خوږیږم
دا دوه ورځې ژوندون دے نن به وی سبا به نهٔ وی
د خلقو ګناهونو، ته چې ګورمه خوږیږم
دنیا فانی فانی ده درته وائمه په شعر......
د نورو شاعرانو دې شعرونو ته چې ګورمه خوږیږم
د داسې دنیاګی نه خلقه ځان له دنیا ښه ده
غلطو روزګارونو ته چې ګورمه خوږیږم
د زړهٔ نه ئې نه ئې جانان کړمه مې څوك هم جانان نهٔ شو
د یار دې نفرتونو ته چې ګورمه خوږیږم
ته ګرځه اے سحر! چرته ځه لیونې ګرځه
د خلقو دې عقلونو ته چې ګورمه خوږیږم

......★★★......

## "نظم" پلار ته

ته يوه ونه ئې د کور .....
ښکلې ښکلې ئې سمسور
مونږ په تا باندې آباد
مونږ په تا باندې يو ښاد
ستا د يخ سيورى د لاندې
ستا په تن کښې زمونږ جاله
يو بې غمه له دنيا نه.......
چې ته نه ئې مونږ به نۀ يو
چې ته نه ئې مونږ به خوار
بيا به ټول شو تار په تار
که ته ځوان ئې بوډا .....
که ته هر رنگې ئې پلار
مونږ په تا له خلقو پټ يو
آفتونو د آسمانه.......
آفتونو د انسانه......
ته مو نخښه ئې د مور...
خدائ دې تالرى سمسور
په اُميد دې يو لوئې کړه
په يو ناز دې يو ساتلې
ستا دى بيل برکتونه.....
ستا دى بيل اضا فتونه....
چې ته ئې جهان زموږه....
چې ته نه ئې، هيڅ به نه وى
مونږ نا پوهه نه پوهيږو
دا ښائسته ښائسته وختونه
پلاره ! هر څه فنا کيږى
دا هر څه رانه ورکيږى...
کړه خطا زمونږه معاف...
چې نه ئې زړۀ مې درز کړى
مې نازک غوندې زړگې
دې شاعر غوندې زړگې
د سحر دغه وينا .......
د هر چا د زړۀ رڼړا

......★★★......

اے دلربا.:.....! "آزار"

خدائ دے بې نوا کـه، لکـه زۀ دې بې نوا کړمه
داسې وار خطا شې، لکـه زۀ دې وار خطا کړمه
روغ زمـا زړګې وو، روغ زړګې دې رالـه وچوۀ
داسې تـه رنځور شې لکـه زۀ دې بې دوا کړمه
مینـه مې ریښتونې ، د مجنون پـه شان......
داسې چرتـه ورك شې لکـه زۀ دې پـه صحرا کړمه
خدائ دې لیونئ مینـه پـه زړۀ باندې ور واچوه
چې ځان لـه تنها ګرځې، لکـه زۀ چه دې تنها کړمه
هسې پـه اُمید او پـه دهوکـه دهوکـه دې بو تلمه
بیا دې لاس تړلې خړ سیلاب تـه حوالا کړمه
زۀ سحَر، فقیر د زړۀ د تل نـه دا آزار کړمه
خدائ دې در پـه در کـه لکـه زۀ چـه دې ګدا کړمه

## ګورې کـه ---------

ګورې کـه نور نظمونـه ولیکمـه ګورې کـه نور شعرونـه ولیکمـه
دا مې د ژوند آخرنې لیکونـه ګورې کـه بیا ورقونـه ولیکمـه
ځما ځوانی ځما بهار ختم شو ګورې کـه نور دردونه ولیکمـه
د تن پـه ونـه مې چینجی لګیا دی ګورې کـه بیا سوچونـه ولیکمه
یـوه هـوا وه رانـه تیره شولـه ګورې کـه نور یادونـه ولیکمـه
پـه لاعلاجـه رنځ ناروغـه یمـه ګورې کـه خپل خیالونه ولیکمه
پـه ډیره مینـه مې زړګې اوسیزو ګورې کـه نور غمونـه ولیکمـه
د ژوند داستان رورو ختمیږی غوندې ګورې کـه بیا فکرونـه ولیکمـه
ژوند یو خوب دے څومره زر تیریږی ګورې کـه بیا خوبونـه ولیکمه
دلربا مینې سره مینـه نـۀ کړی ګورې کـه نور آهونـه ولیکمـه
ښکاری مرګې رالـه د وختـه راځی ګورې کـه نور حرفونـه ولیکمه
داسې د مینې او د راز خبرې ګورې کـه بیا رازونـه ولیکمـه
دیل پـه مینـه، جدائی مې ډیر لیکل کړی دی ګورې کـه نور غزلونـه ولیکمه...

شاعری نخښه د سحَر د مینې
ګورې کـه نور لیکونـه ولیکمه

# اے ښځې!........(آزاد نظم)

تهٔ چې نهٔ ئې زهٔ به څه کړم

تهٔ چې نهٔ ئې........

پریشانه، سرګردانه به ګرزیږم

لیونې به چرته ګرزم........

در په در خاورې په سر......

پریشانه به ګرزیږم

د ژوند سفر به کړمه

بیا د چا سره کښینم به ګورې

څوك د ناستې دلته چرته

دلته څوك هم د زړه نشته

بیا به ځان له چرته ناست یم

ستا یادونه به کوم

ستا دردونه به کوم

ستا فراق کښې به مې اوښکې

له چشمانو نه بهیږی

وی به هر څه.....

خو به نهٔ وی......

خوشحالی به وی بیا چرته.....

خوږ زړګی به څوك قلار كړي
هر يو وخت به مې يادېږي....
په زارو زارو به ژاړم
يادوم به دې وختونه....
ليونې به له فراقه.....
ليونې به شم له غمه...
تا عادت داسې راكړې
مې عادت د ماشومانو
هر يو ځائ به لټومه
.تا به ګورم ته به نۀ ئې..
تۀ چه نۀ زۀ به څه كړم
په زارو زارو به ژاړم
د هر څه به زۀ ليواله...
ارمانونه به كوم.....
افسوسونه به كوم...
ته چې نه ئې زۀ به څه كړم

......★★★......

- نوم : محمد طارق
- تخلص : سؔحر
- د پلار نوم : یوسف خان
- قام قبیله : خټک
- درک : شاه ډنډ، لوندخوړ، مردان، پختونخواه
- کسب : د ادب اُستاد گورنمنټ هائیر سیکنډری سکول لوندخوړ
- د پیدائش نیټه : پینځلسم ستمبر1964

طارق سؔحر د مجاز او حقیقت په فلسفه پوهه او دانشور شاعر دے

پروفیسر ډاکټر راج ولی شاه خټک
(پېښور یونیورسټي)



## چاپ کتابونه

(۱) ددشت لاروې

(۲) ژوند یو سراب

(۳) یادونه او دردونه

(۴) خالی لاسونه

(۵) خیالونه او فکرونه

(٦) دردونه احساسونه